# کندهار

د ۱۳۹۶ کال د سلواغې او کب ٦ ګڼه

د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



خان عبدالغفار خان (باچا خان)





# کندهار




علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست

مؤسس

**محمدولي زلمی**

مسئول مدیر

**محمدنبي سلطاني**

کتنپلاوي

**ډاکټر عبدالرازق پالوال**

**استاد محمد معصوم هوتک**

**پوهنمل شېرشاه رشاد**

**استاد حیات الله رفیقي**

**محمد یار یار**

**محمد ابراهیم سپېڅلی**

**درېیمه دوره**

**د ۱۳۹۶ش کال شپږمه ګڼه (دلوه - حوت)**

**پرله پسې ۸۵ یمه ګڼه**


**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیان رسوونکي لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکلي لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي لیکني بیرته نه ورکول کیږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او له هیواده دباندي د مجلې بیې**

هیواد: ۳۰ - افغانۍ

پاکستان: ۱۰۰ - کلداري

**کلنی ګډون**

هیواد: ۱۸۰ - افغانۍ

پاکستان: ۶۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۱۰۰ - امریکایي ډالره


پته

**علامه حبیبي واټ**

**اطلاعاتو او فرهنګ ریاست**

**د کندهار مجلې دفتر**

**ټلیفون: ۰۷۹۳۰۴۰۱۴۰**

ایمیل ادرس: kandaharmagazine@gmail.com

# فهرست

## څېړنه


| ګڼه | سرلیک | مخ | لیکوال |
|---|---|---|---|
| ۱ | پاچاخان د امن او سولییزي مبارزې نمونه | ۳ | د اداري یادابښت |
| ۲ | د پاچا خان سیاسي او ټولنیزه مبارزه | ۴ | فضل الباري بريالی |
| ۳ | د باچاخان مبارزه او زمونږ ناغېرې | ۷ | نثار احمد صالح |
| ۴ | پاچا خان؛ ملي هویت او ملي ژبه | ۱۲ | پوهیالی عبدالواحد کالون |
| ۵ | ها چي مذهب ئې نه تاوتریخوالی وو | ۱۴ | نجیب الله هوتکي |
| ٦ | د سیاسي او ملی مبارزینو ویناوي و خپل اولس ته لوری ورکونکي | ۱٦ | حیات الله رفیقي |
| ۷ | له سُرخپوشانو تر سور خولیو د عدم تشدد حقانیت | ۱۸ | محمد یار یار |
| ۸ | د کندهار کتابتونونه او مشهورخطي کلکسیونونه | ۲۴ | استاد محمد معصوم هوتک/ کاناډا |
| ۹ | هنر مند واکمن | ۲۹ | ډاکټر نثاراحمد صمدواصفي/ کاناډا |
| ۱۰ | د مجروح ځانځاني ښامار ته یو لنډ نظر | ۳۳ | واحد فقیري/ واشنګټن |
| ۱۱ | معاصر پښتو نظم، فکر او تکنیک | ۳۹ | عصمت الله زهیر |
| ۱۲ | بسم الله غرنی؛ وطن پرست شاعر | ۴۷ | محمد ابراهیم سپېڅلی |
| ۱۳ | د نوښتونو څپې | ۵۰ | بشیر احمد بشارت |
| ۱۴ | سوله؛ نبوي سنت او بشري اړتیا | ۵۳ | زبیر افغان |
| ۱۵ | د ګوره زامن | ۵۷ | ډاکټر عبدالروف رفیقي |
| ۱۷ | کوټه؛ د کندهار هېره فرهنګي حوز | ٦۲ | سردار ولي پښتون زوی |
| ۱۸ | خرقه شریفه د تاریخ په اوږدوکي | ٦٦ | صدیق الله عظیمي |
| ۱۹ | سټیفن ویلیم هاکینګ | ۷۴ | سعید لودین/ کاناډا |
| ۲۰ | د سفالین لښکر | ۷٦ | سیف الدین لودین |
| ۲۱ | د پرېکړو پروسه | ۷۹ | جان محمد مهربان |
| ۲۲ | ماشوم، معصوم، کوچنی | ۸۵ | نور احمد قران مل |
| ۲۳ | د عشق مقام | ۸۹ | جانباز |


### شعرونه


| ګڼه | سرلیک | مخ | لیکوال |
|---|---|---|---|
| ۱٦ | هنر او ادب | ۷۰ | ترتیب: م.ا. امید |


### ترجمه


| ګڼه | سرلیک | مخ | لیکوال |
|---|---|---|---|
| ۲۴ | په اروا پوهنه کې د ډاکټر البرټ بنډورا تجربه | ۹۲ | ژ / سعید لودین/ کاناډا |
| ۲۵ | د کابل پېغله | ۹۴ | ژ/ ډاکټر نثاراحمد صمدواصفي/ کاناډا |


### خاطرې


| ګڼه | سرلیک | مخ | لیکوال |
|---|---|---|---|
| ۲٦ | عبدالظاهر څرک ته د عبدالهادي ریشا لیک | ۹۹ | مرحوم عبدالهادي ریشا |
| ۲۷ | پوهاند رشاد ته د مولانا ابوالوفاء افغاني لیک | ۱۰۴ | مرحوم مولانا ابوالوفاء افغاني |


### راپورونه


| ګڼه | سرلیک | مخ | لیکوال |
|---|---|---|---|
| ۲۸ | د اطلاعات او فرهنګ ریاست د فعالیتونو دوې میاشتنی راپور | ۱۰۵ | اداره |

## پاچاخان د امن او سوليېزې مبارزې نمونه

د انسانيت سمبول، د علم او پوهې داعي، د پښتونولۍ نمونه، د صبر او زغم څښتن (خان عبدالغفار خان)، چې لوی او کوچني، ښځې او نر، واړه او زاړه، خپل او پردي ته ئې د مينې، شفقت، ورورولۍ، سولې او نه تاوتريخوالي درس ورکړی، د استعمار پر ضد ئې د پښتنو د راويښولو او ملي حکومت د جوړولو ږغ پورته کړ، د خپلواکۍ په لار کې ئې بند و ګالۍ، د پوهې او علم د دود ولو لپاره کلي پر کلي او کور پر کور وګرځېدی، د ناسمو دودونو په وړاندې ودرېدی، د طبقاتي او جنسي توپيرونو مخالفت ئې وکړی، د ښځو تعليم ئې باب کړ، په ښځو کې ئې د کمترۍ احساس له منځه يووړ، د آزادو ښوونځيو بنسټ ئې کېښود، پښتنو ته ئې د مطالعې چم ورزده کړ، مجله ئې ورته چاپ او انجمن ئې ورته جوړ کړ، کار او صنعت ته ئې وهڅول، د مذهبي تعصب جرړې ئې وايستلې، مثبت فکر ئې د ذهن پر پرده ورته انځور کړ او....

په دې ډول کړنو سره «خان عبدالغفار خان» په نړۍ واله کچه د ډېرو اولسپالو، ملتپالو، هيواد پالو، سوله پالو او سوله خوښوونکو څېرو په سر کې ځای لري. بېلا بېلې پرګنې، علمي کړۍ، پوهنيز مرکزونه، څېړنيز بنسټونه او مبارز شخصيتونه ئې لار تعقيبوي او غواړي چې د ده پر پله قدم کېښږدي.

راسئ مونږ هم په دې حساس وخت کې د خان عبدالغفار خان لار خپله کړو، د «خان» د معنويت تر سيوري لاندې خپل معنويت جوړ کړو، په ملتپالنه، اولسپالنه، هيوادپالنه، اولس جوړونه او... کې د هغه په څېر واوسو.

انسانيت وژغورو، انسانيت وپالو او انسانيت جوړ کړو، د حقانيت په رڼا کې د ناپوهۍ پردې د هغه مرحوم د ارمانونو سره سم د اولس له سترګو پورته کړو او د هغه په څېر د عامه ذهن د سمون لارښوونکي و اوسو.

دا هغه وخت کېدای سي، چې د خبرو، لمانځلو او ويناوو ترڅنګ په عمل کې دا ثابته کړو، چې مونږ په عدم تشدد (نه زور زياتي) کې د «خان عبدالغفار خان» په څېر اولسپال، ملتپال، هيواد پال، سوله پال او ... يو.

فضل الباري بريالی

# د باچا خان سياسي او ټولنيزه مبارزه

سیاسي مبارزه:

باچا خان د پښتنو یوازینی سیاسي مشر وو، چې عدم تشدد ته ئې پښتون غوندي متشدد قوم راوباله او د نه تشدد تخم ئې پکي وشیندی. باچا خان نه یوازې د پښتنو د ویښتیا او آزادۍ لپاره مبارزه وکړه، بلکې د هند په آزادۍ کي ئې مخکښ رول ولوباوه. هغه د پښتنو د حقوقو لپاره د ژوند شاوخوا ۳۰ کاله په بند کي تېر کړل او د مرګ تر حده کړاوونه ئې وزغمل. انګرېزانو به ویل چې: *د عدم تشدد پر اصولو روان پښتون تر متشدد پښتون ډېر خطرناک دی.*

باچا خان یو ډېر مترقي نېشنلیسټ وو او پر خدایي مرستي ئې ټینګ باور درلود. هغه له خپل قوم څخه د خپلو زحمتونو عوض نه غوښت او نه ئې احسان پر اچاوه، بلکي دا ئې خپله ایماني او وجداني دنده بلله، چې پښتون قوم له غلامۍ څخه خلاص کړي. هغه د پښتنو د آزادۍ او د انګرېزانو له ظلمونو څخه د خلاصون لار د پښتنو تعلیم، د پښتنو د سیاسي شعور بیدارول، د پښتني ښځو سیاسي او ټولنیز فعالیت، له انګریزي حکومت سره عدم تعاون او د پښتنو اتحاد بالله.

باچا خان که څه هم په لومړیو کي په پښتنو کي د ټولنیزو اصلاحاتو د رامنځته کولو لپاره پایځې راپورته کړې، خو وروسته ئې مبارزې سیاسي رنګ خپل کړ. باچا خان د عدم تشدد د سیاسي مبارزې انګېزه د پښتنو له مشهور شاعر او دیني عالم مولانا فضل محمود مخفي سره اشنایي یادوي، خو وروسته یې له ځینو نورو دیني علماوو سره هم ملګري پیدا کړه چې دی ځني اغېزمن سو.

هغه د خپلي سیاسي مبارزې په ترڅ کي لومړی کار دا وکړ، چې په ۱۹۱۰ کال کي ئې پخپله پلرنۍ سیمه اتمانزو کي یوه ولسي مدرسه جوړه کړه. تر دې وروسته ئې د پښتنو کلیو او اطرافو ته مخه کړه، چې د ۱۹۱۵ او ۱۹۱۸ کلونو تر منځ ئې د خیبر پښتونخوا ۵۰۰ کلیو ته سفرونه وکړل او پښتانه ئې تعلیم، یووالي، ورورولۍ او آزادۍ ته وهڅول.

باچا خان په ۱۹۲۱م کي د پښتنو د ناوړه دودونو د اصلاح کولو، د تشدد له منځه وړلو او د ورورولۍ د رامنځته کولو په موخه د «انجمن اصلاح الافاغنه» په نوم ټولنه جوړه کړه او له دې سره ئې د پښتنو پر زیاتو سیمو دوره وکړه.

باچا خان د ۱۹۲۹ کال پر مهال په لاهور کي د هند د کانګرس ګوند په کلنۍ جلسه کي ګډون وکړ او خیبر پښتونخوا ته ئي له راستنېدو سره سم په اتمانزو کي لويه غونډه جوړه کړه. په هغه غونډه کي ئې د هندوانو د بيدارېدو جذباتي کيسې وکړې او وې ويل چي له يوې خوا انګرېزان پر هندوستان د واکمنۍ دعوه کوي او له بلي خوا هندوان وايي چي پر هندوستان د حاکميت حق زموږ سره دی، خو مسلمانان د غفلت په خوب ويده دي. که تاسو پښتانه ځانونه د دې وطن مالکان ګڼئ، نو پاڅئ، ملا وتړئ او دا ملک خپل کړئ. د غونډي پر ګډونوالو دې خبرو ډېر اغېز وکړ. په همدې شپه د اتمانزو محمد اکبر خان، سرفراز خان، حجاب خان او څو نور ځوانان باچا خان ته ورغلل او ورته وې ويل چي يوه ټولنه بايد جوړه کړو. باچا خان په اول سر کي ورته وويل چي د ټولني جوړول اسانه کار نه دئ، خو هغوی په تکراري ډول د ټولني پر جوړېدو ټينګار وکړ. وروسته ټولو موافقه سره وکړه او سبا ته ئې د بيا ناستي او د ټولني د نوم ټاکلو ژمنه وکړه. باچا خان ښه فکر وکړ او سبا ته ئې د «خدايي خدمتګار» نوم ذهن ته ورغی او په سبا ټولو پر همدې نامه اتفاق وکړ. باچا خان وايي: **«موږ پښتانه خدايي کار او خدمت هغه کار او خدمت ته وايو چي له تمې، غرض او اُجرې پرته د خدای لپاره وسي او خدای خو خدمت ته ضرورت نه لري، نو د خدای د مخلوق خدمت د خدای خدمت دی.»**

تر دې وروسته دوی ډېرو پښتني سيمو ته ولاړل او هري سيمي ته له رسېدو او تقرير کولو سره ډلي ـ ډلي خوانان ورسره يو ځای کېدل او په دې سره د خدايي خدمتګارانو ټولنه ورځ تر بلي غټېدله. دوی خدايي خدمتګارانو ته دا تلقين ورکاوه چي په هېڅ صورت به تشدد نه کوي او د خدای د مخلوق هر ډول خدمت به د خدای لپاره کوي.

په لومړي سر کي خدايي خدمتګاران يوه غير سياسي ټولنه وه، خو د انګرېزانو د ظلمونو له امله سياسي فعاليت ته مجبوره سوه. يو وخت داسي راغی چي خدايي خدمتګارانو او د هند ملي کانګرس ګوند له انګرېزي حکومت سره د عدم تعاون اعلان وکړ. له دې سره سم باچا خان او عبدالصمد خان ۳ کاله زندان ته واچول سول. تر راخوشي کېدو وروسته چي کله آزادي غوښتونکو د انګرېزانو پر خلاف لاريون وکړ، نو انګرېزانو سلګونه لاريون کوونکي ووژل.

وروسته باچا خان د ۱۹۳۱ کال په اګسټ کي د هند له ملي کانګرس ګوند سره د يو ځای کېدو پرېکړه وکړه او ورسره يو ځای سول. د دې کال د ډسمبر پر ۲۴ د حکومت له خوا ګرفتارۍ وسوې چي باچا خان هم پکي ونيول سو. انګرېزانو د ۱۹۳۴ په اګسټ کي باچا خان له دې امله خوشي کړ، چي د کانګرس د ټولو بنديانو خوشي کېدو ته مجبور ول.

باچا خان په ۱۹۴۷ کال کي د يو پلاوي په مشرۍ ډيلي ته ولاړی او هلته ئې د انګرېزي وايسرای لارډمونټ بيټن سره وکتل او هغه ته ئې ورانديز وکړ چي موږ آزادي غواړو او زموږ ټولي هڅې د وطن د آزادۍ لپاره دي. په دې وخت کي انګرېزانو له مسلم ليګ ګوند سره لاس پټ کړی وو او دا ګوند ئې دې ته وهڅاوه چي هندي مشرانو ته د مسلمانانو او هندوانو د بېلتون ورانديز وکړي. بالاخره ګاندي ته دا ورانديز وسو چي مسلمانان او هندوان دي بېل ـ بېل هيوادونه

ولري، هغه هم دا وړاندیز پرته له دې چې له باچا خان سره مشوره وکړي، ومانه. باچا خان چې دا خبر واورېد، سخت خواشینی سو او دا خبره ئې تکراراً وکړه: «که چېرې کانګرس خدایي خدمتګار د شرمښانو خولو ته وروغورځول نو دا به د صوبه سرحد سره غداري وي.»

د ۱۹۴۷ د جون پر ۲۱ په بنو کې یوه غونډه جوړه سوه، چې د پښتنو د یو آزاد حکومت د رامنځته کېدو پرېکړه پکې وسوه او د پښتونستان د جوړېدو خبره مطرح سوه. په دې وخت کې د پاکستان د قانون سازۍ د اسمبلۍ غونډه راوبلل سوه چې د خدایي خدمتګارانو له خوا باچا خان ورولېږل سو. باچا خان ورغی او هلته یې له هیواد سره د وفادارۍ لوړه هم وکړه، خو پر دې سربېره د پاکستان له خوا په پرله پسې توګه تقریباً ۲۲ کاله بندي کړل سو او د پاکستان له خوا په عمومي توګه پښتانه په تورو تیارو کې وساتل سول او د محکومیت لپاره ئې تر اوسه دوامداره هڅې کیږي.

**ټولنیزه مبارزه:**

باچا خان په ځوانۍ کې د ناسمو دودونو په وړاندې ډېره مبارزه وکړه. پخپل واده کې ئې د بېځایه خرڅونو مخه ونیوله، لوړ ولور ئې بد وباله، په ژوند کې ئې د طبقاتي او جنسي توپیرونو مخالفت وکړ، د ښځو د تعلیم لپاره او پر هغوی د جبر پر ضد ئې ملا وتړله، د مذهب په نوم ئې د خودساخته دودونو مخالفت وکړ او د اسقاط پر ضد ئې جدي مبارزه وکړه.

باچا خان د آزادو ښوونځیو بنسټ کښېښود، د پښتنو د تعلیم یافته کېدو لپاره ئې کلي په کلي سفرونه وکړل، د (پښتون) په نوم ئې لومړنۍ پښتو مجله تاسیس کړه، خلک ئې مطالعې ته وهڅول، د کورنۍ له مېرمنو سره ئې یو ځای ډوډۍ خوړل باب کړل، په ښځو کې ئې د کمترۍ د احساس له منځه وړلو لپاره کوښښونه وکړل، د ملایانو پر ځای ئې غریبانو ته د زکات ورکړه باب کړه، خلک ئې کار او صنعت ته وهڅول، د مذهبي ټګماریو پر ضد ئې تبلیغات وکړل. د احساساتو پر ځای ئې خلک عقلانیت ته راوبلل، د نورو لپاره ئې هغه څه ښه وبلل چې د ځان لپاره ئې خوښول، خلک ئې مثبت فکر او ژغم ته راوبلل، د مسلمانانو، هندوانو او سکانو د اتحاد لپاره ئې شپې – شپې روڼې کړې، خلکو ته ئې د مخالف منلو جرئت ورکړ، نوی فکر ئې خوښ کړ، په خلکو کې ئې د ټینګې ملګرۍ احساس راژوندی کړ، د مذهبي تعصب د ریښو ختمولو لپاره ئې هلې ځلې وکړې، خلکو ته ئې د وفادارۍ درس ورکړ، د ایمانداری سیاست ئې رواج کړ، په کوم کلي کې چې به ئې غونډه جوړوله، نو د کلي پر اوسېدونکو ئې د ډوډۍ او چایو بوج نه اچاوه او هغه وخت باچا خان لومړنی کس وو چې خپلې مېرمني ته ئې وویل که زه مړ سوم، نو ته بل واده کولای سې.

د باچا خان یوه بله ځانګړتیا دا وه چې یو ډېر دیندار او متقي انسان وو. په بند کې به ئې د قرآن کریم ترجمه کوله، د مسلمانانو، هندوانو او سکانو تر منځ به ئې د مینې پیدا کېدو لپاره هڅه کوله او په عموم کې ئې ټول ادیان د انسانانو د اصلاح لپاره ښه ګڼل او د خدای پر لمانځنې ئې ټینګار کاوه.

په ۱۹۶۹ کې چې کله د مهاتما ګاندي سلمه کلیزه لمانځل کېده، نو باچا خان ته هم بلنه ورکول سوه. باچا خان د کابل له لارې ډیلي ته ورغی او د هندي حکومت له خوا (د سولې او بین المللي تفاهم

جایزه) ورکول سوه. باچا خان ته د هند مشهوره ملي جایزه (بهارت رتنا) هم ورکول سوې ده.

باچا خان په ۱۹۷۸ کي هند ته تللی وو، چي هلته د خوب پر مهال فلج ناروغی حمله پر وکړه او تر اوږدې ناروغۍ وروسته د ۱۹۸۸ کال د جنوري پر ۲۰ نېټه ئې له دې نړۍ سترګي پټي کړې او له خپل وصیت سره سم په جلال آباد کي خاورو ته وسپارل سو.

انا لله وانا والیه راجعون

**د باچا خان د ناکامۍ عوامل:**

باچا خان د هند پر نورو آزادي غوښتونکو مشرانو په خاص ډول مهاتما ګاندي ډېره تکیه وکړه او هغوی د ده له باور څخه غلطه استفاده وکړه او خپلو ګټو ته ئې له پښتنو سره پر مشترکو ګټو ترجیح ورکړه. دا د باچا خان لپاره په سیاست کي یو ښه درس دی؛ یعني په سیاسي ګټو کي هر څه پر بل مخ رااوښتلای سي.

انګرېزانو په مسلمانانو او هندوانو کي د اختلافاتو د رامنځته کولو او مسلم لیګ ګوند خپل اقتدار لپاره هلي ځلي وکړې، چي هند پر مسلمان او نامسلمان تقسیم کړي چي په دې اور کي له هند څخه د لیري جغرافیوي موقعیت له امله پښتانه په اور کي وسوځېدل.

د پښتنو بېسوادي، جګړه ییز ذهنیت او د مذهبي کړیو تبلیغ د باچا خان د ملاماتېدو سبب سول، په داسي حال کي چي هندوان د پښتنو په پرتله د دغو ستونزو ښکار نه ول.

په تاریخي لحاظ هر هغه ګوند، ډله او شخص بریالی سوی او خپلو اهدافو ته رسېدلی دی، چي حاکمه طبقه ګرځېدلی دی. د حاکمیت په صورت کي اهداف ډېر ښه لاسته راوړل کېدای سي، له بده مرغه باچا خان سیاسي مشري یا حاکمیت پخپل لاس کي وانخیست او دا یوه لویه تېروتنه وه.

باچا خان سیاست په ډېر مخلصانه او رښتیني ډول کاوه، په داسي حال کي چي په سیاست کي باید د هیواد او خپلو خلکو ګټو ته ډېره ترجیح ورکول سي او ځیني وختونه دا اړتیا له مخي سازشونه وسي.

**عبدالله ستوری**

## غزل

چي شپې په سپینو اوښکو سپینه ومه مروره
خو تا به لکه سوله راولمه مروره

داني به د ملالي دهار بیاکړمه راټولي
په تار کي دوحدت به ئې پېیمه مروره

ښه مسته دعا راکه ئې شیر بربټي شاه ملنګه
جنډۍ به دزیارت پخلا کومه مروره

تیارې به لونګیني ستادزلفو په وږمو کړم
خوښۍ به له غمونو زېږومه مروره

دستوري غزلتوري درته یو یو صدقه سه
جګړې به نور په مینه بدلومه مروره

نثار احمد صالح

# د باچاخان مبارزه او زموږ ناغیږي

د پروفیسور خالق رشید په قول، چې د عدم تشدد (نه زور زیاتي) فلسفه تر باچاخان او ګاندهي جي پوري را الندې نده؛ بلکي دا لار مسیح او بودا پرانیستي وه، دا چي حالات تغیر مومي، دې فلسفې هم د چاپیریال په رنګ ځان ملمع کړی دئ.

زه چي د عدم تشدد فلسفه او د دې لارې معاصر سروالان مطالعه کوم، یو افسوس دا راته ودرېږي، چي ددې لارې تقریباً ټول مبارزین بریالي او یو هوسا او متمدن ملت لري، موږ ولي داسي سولو، چي عدم تشدد ته مو په کرکه وکتل، ددې لارې هغه تر ټولو مبارز کس مو د دین په نوم لادینه کړ او یا مو د کلتور په نوم ارمانجن له ژونده تېر کړ؟؟

موږ که د جنوبي افریقا د نلسن منډیلا، د امریکا د مارتین لوتر ګینګ او یا هند مهاتما ګاندهي ژوند د باچاخان د هغه سره مقایسه کړو، یو لوی تفاوت دا دئ، چي له باچاخانه ماسیوا، دا نورو مبارزینو چنداني هوساژوند نه درلود، خو باچاخان د خپلي سیمي د لویو خانانو په قطار کي راتلی، دا چي یو سړی د مانیو او شیشمحل ژوند پرېږدي او د خپلو غریبو هیوادوالو په شان د هغوئ سره په وچ نس شپې سبا کوي، دا د لویو انسانانو خاصه ده، چي مرحوم باچاخان درلودل...

مرحوم باچاخان د وجود په رګ ـ رګ د عدم تشدد فلسفه درک کړې وه، هغه پوهیدی، چي د تشدد په نتیجه کي احاطې اور اخلي، انسانان قتلیږي، ښځي او کوچنیان بې سرپنا کیږي، د ملتونو تربیه بالکل له منځه ځي او د انسان وجود ټوله کرکه نیسي، خو برعکس عدم تشدد بیا هره لویه او کوچنۍ، ملي او نړۍ واله ستونزه د ډیالوګ او خبرو له لارې حلوي، د عدم تشدد په موجودیت کي بیا اخلاق ثابت پاتیږي او مینه په ټول ماحول کي خپریږي.

خو باچاخان نه وو خبر چي دده ولس، د نورو په پرتله همېشه خپلي ریښې په خپله وهي، باچاخان څه خبر وو، چي افغان ملت همېشه د دښمن تبر ته لاستی وراچوي او د خپل وطن بیخ او بنیاد په کاږي.

زما د مکتب په دوره کي، د البیروني لیسې یو معلم وو، موږ ژړلنګوټی بلی، یوه ورځ ئې د کاکا سیداحمد مرحوم په اړه بحث یاد سوو، دا معلم د کاکا سیداحمد او باچاخان په اړه چي پر خوله ورتلل هغسي چټیات وویل، باچاخان ئې د انګرېز لوی لاسپوځی را معرفي کړ، دا معلم ویل چي باچاخان ځکه زموږ د تاریخ توره څېره ده، چي زموږ غیرت ئې را وژی او افغانان ئې د جهاد له مقدسي فرضیې څخه منحرف کول.

زه کوچنی وم، خو د ټ ټوپک او ت توري نظریې زما ذهن هم په خپلو تورو منګلو کي اخیستی وو، ځکه مي د هغه معلم پر خبرو من ـ من غوښه اخیستل، نن

چي ددې وطن دا بده ورځ وینم، د هغه معلم احساسات او د خولې نارې مې سترګو، سترګو ته کیږي.

په هند کې د ۱۰۰۰ مذاهبو وګړي د ګاندهي جي د مبارزې په برکت خوشحاله ژوند لري، د امریکا د ۴۴ م تورپوستي ولسمشر راتګ د لوترکینګ د مبارزې رنګ وو، د جنوبي افریقا د پرمختګ یوازنی دلیل پر منډیلا د ظلم زغم او د اپارتائید سیستم د له منځه وړل دي، خو دا چي په افغانستان کې د یوې عقیدې خلک یو وبل نه سره زغمي، د دوو مذاهبو لارویان دو زره چلونه یو و بل ته جوړوي او د وینو تویلو غوړې سره وهي، دا د هغه لاسپوڅو د کار نتیجه ده، چي په مکاتبو او مدرسو کې به ئې موږ د خپلو ملي نوامیسو په وړاندي درولو او زموږ له نازکو احساساتو به ئې ناوړه ګټه اخیستل....

موږ که د باچاخان پر ګام قدم ایښی وای، اوس به مو ولي د غیرت په نوم خور سرتوره کول، ولي به پر عادي خبره تر چاکو او پنجه بوکسه سره رسېدلو؟

زغم او حوصله د ټولنو د اخلاقیاتو نچوړ وي، دا چي موږ په دې خطا ایستل سوي یو، چي افغانان غیرتیان دي او غیرت بیا د تربور سیوری په توره وهل راته تعریف سوی دئ، موږ یو له بله انتقام ته غیرت وایو، همدا علت دی، چي دلته د عدم تشدد لارویانو ته د بیرندوکي په سترګه کتل کیږي، خو که د زغم او نه تشدد نتایج وګورو، په مراتبو تر تشدد مثبتي تمامي سوي دي.

د عدم تشدد دوه مهم ښاخه، یو ئې سیاسي او بل ئې ټولنیز اصلاحي دئ، دا چي په افغاني ټولنه کې ټولنیزي ستونزي په خروارو دي؛ نو ځکه باچاخان ددې دوهم ښاخ پیرو دی. زموږ د ټولني ضعف زموږ د ټولنیزو ستونزو زیږنده ده، موږ ښځه یا د کور بولو یا د ګور، موږ د مور د نامه په یادولو د شرم احساس کوو، خو پر بل سر ئې بیا تر پښو لاندي جنت ته خوشحاله یو، موږ د فیشني ژوند طرفدار یو، خو د تعلیم په برخه کي یوه سلسله ستونزي لرو، موږ اولادونه زیات زیږو، خو د تربیه سپارش ئې خدای ته کوو، موږ پر دین سر ورکوو، خو په دین سر نه خلاصوو، موږ همېشه ویني تویوو، خو خولې نه تویوو، موږ د خور او لور په تعلیم شرمیږو، خو په نارینه ډاکتر بیا د خور او مېرمني علاج ته سل دلایل تراشـو... دا او دې تـه ورتـه پـه زرهـاوو سـتونزي د باچاخان مرحوم لـه خوا بحث سوي دي او هـم ئې په خپل ژوند کي تطبیق کړي دي. هغه مرحوم پوهیدی، چي د ده د ټولني ناخوالي د هغې ټولني ناوړه رواجونه او فرهنګونـه دي، باچاخـان مرحـوم ویـل، مـا د خپلـي سیمي د ښوونځایونو تدریس په پښتو ژبه واروئ، وای د انګریزانـو جاسوسي طبقې اوازه واچول چي پښتو د دوږخ ژبه ده، وای ما په یوه مجلس کي یوه ملا صاحب ته وویل چي صیب تاسو کله له دوږخه راغلاست چي هلته خلکو پښتو ویل؟

د انګریزانو د همدې اوازې ازانګه تر ننه زموږ تر غوږو رارسي، چي پښتو د دوږخ ژبه... دې قضیې ته په کتو حمزه بابا ته الهام وسو:

وای اغیار چي د دوږخ ژبه ده
زه به جنت ته له پښتو سره ځم

یا د سائل صاحب په وینا:

زما پر دواړو اوږو ناســـتو فرشتـو ولیکئ
زما پر سر که څه لیکی نو په پښتو ولیکئ

تاسو له پوره ته موضوع څخه حدس ووهئ، چي د باچاخان په وړاندي به څومره ستونزي وې؟ چي هغه د

خپلي مور نې ژبې د تحقق لپاره دومره خنډونه لرل؛ نو د نورو کيسو لپاره به څومره ستونزي وې؟

باچاخان پوه وو، چې د تشدد په لاره کې، له افغانانو(خاصتاً پښتنو) څخه ناوړه استفاده کيږي، خو تر ګټي وروسته د پښتون اولاد بيرته له لوږي مري او د بريا کريډيټ نورو ته ځي، په دې اړه د تېرو څلوېښتو کلونو د جنګونو او شرونو نتايج تاسو وينئ! د جهاد په نوم موږ استعمال سو، خو دا ټوم خاوندان نور سول، اولاد د افغان قتل سو، خو له نړۍ والي ټولني امتياز نورو واخيست، هم د جهاد په نوم وجنګول سولو او هم تر جهاد وروسته پر نورو مالتونو کي فقر ته مجبوره سولو، دا د تشدد نتيجه وه، چي په خپلو کي مو د کمونيست او اخواني په نوم سره ووژل، خو لوني او خويندي مو پر پنجاب فقر و ذکر ته مجبوره سولې....

زه نه پوهيږم چي زه ولي له دي خبري سره موافق نه يم، چي پښتون په زور جنت ته نه ځي خو په رضا دوږخ ته هم ځي... کوم داسي اضافي او متفاوت شی په پښتون کې سته او په نورو انسانانو کې نسته چي پښتون دومره متشدد او ضدي کوي؟ پر يوه سر که دا يو علمي او پېچلي سايکلوژيکه موضوع ده، خو پر بل سر ئې جواب دومره سخت هم ندی، زما په نظر که په اول قدم کي د عدم تشدد پر لار پل کښېښول سي، پښتون او بل هر انسان به تشدد ته نه ووايي، ځکه پښتون هم د مځکې پر ګره د نورو وګړو په شان ښه ژوند، ښه صحت، ښه جامه او بچي ئې ښه تعليم ته اړتيا لري. دا چي افغانان د تاريخ په اوږدو کي په شعوري ډول محروم پاته سوي دي؛ ناوړه نتايج ئې موږ نن مشاهده کوو. د باچاخان لار بس همدا د تفاهم له لاري د ښه ژوند زمينه سازي ده، هغه يوه ورځ يوه ډله ملايان د ځان سره بېولي ول، يو قصر ته ئې درولي ول، ويل ملاصاحبانو دا قصر څنګه دئ؟ هغوئ ويلي وه، چي ښخي ښايسته دئ، بيا قصر ته ور داخل سوي وه، واي د قصر په منځ کي يوه ګلخانه وه، واي ما ويل دا ګلان څنګه دي؟ واي ملايانو ويل ښخي ښه دي، واي د قصر په يوه بغل کي ښايسته موټر ولاړ وو او ورسره کوچنيانو لوبي کولې، واي ما ويل دا څنګه دي، واي ملايانو صاحبانو ويل، دې کي خو هيڅ ويل نسته، واي لږ چي ور تېر سولو، د ګلانو په منځ کي يو ښايسته سپين کالی سړی ناست وو، واي ما ويل دا سړی وينئ، ويل دوی ويل هو! بيا ما ورته وويل چي دا د عيسويانو امام دئ، هغه قومونه او ملتونه چي کار کوي او خواري ګالي، هغوی خودکفا، هوسا او رنګين ژوند لري، برعکس هغه قوم چي خپلي ريښې په خپله باسي، يو و بل ته سره زغمي هغه به زموږ په شان وي چي حتی تاسو ملا صاحبان مو لا کور پر کور ګرځی او ځيره غواړی او سم په خېټه نه يوو سره ماړه.

باچاخان مرحوم زموږ د ټولني د هري ستونزي عمق ته ور داخل سوی وو، هغه د افغانانو خاصتاً د پښتنو د بدي ورځي بد عواقب هر ګړی مخي ته ايښول او پر حلچاروئي غور او فکر کاوه.

افغانستان، خاصتاً د باچاخان مېنه د افغانستان په تاريخ کي د جهاني قدرتونو د غېږو ميدان وو، کنه اصل کي د کوشانيانو د تاريخ دور تر بل هر وخت د عدم تشدد يوه نمونه وه، دا چي په هرو ۵۰۰ کلونو کي زموږ پر وطن يو آبر قدرت را ګرځي او تر وحشتونو ئې موږ قرباني کيږو او بيا د تمدن له مداره لويږو، دا هغه عوامل دي چي علمي څېړنه او تدقيق ته اړتيا لري، نه پښتون ضدي دئ او نه په رضا سکر ته ځان اچوي؛ بلکي

محرومیت او وحشي ذهنیت له افغانانو د ښه ژوند فرصتونه اخیستي دي....

د عربو او ترکانو، گورگانیانو او صفویانو، بیا د انگیزانو او تزاري روس، وروسته د کمونیزم او کپټیلزم جنگ او اوس بیا د ناټو او امریکا تگ او راتگ تاسو وگورئ، چې دا پورته ډلو قدرتونو موږ څنگه او په کوم سیاست رېزمرېزه کړي یوو.

د اوسني معاصري نظریې پر بنیاد، چې د اکثریت متمدنو هیوادونو د پرمختگ رازونه نه، دهغوی تیل دي، نه د هغوی نوري زېرمي، بلکي د پرمختگ یوازنۍ لار یو و بل منل او زغم دی، چې دغه د زغم او عدم تشدد فلسفه د باچاخان یو له هغوو میراثونو څخه ده، چې دنیاوي، دا انساني لار به ودانه وي.

نن سبا یوه ډله چې باچاخان به نۍ پنځه فیصده هم نه وي مطالعه کړی، دومره بدخونده نیوکي پر کوي، چې د سړي زړه دردوکړي، زه نه وایم چې باچاخان تر انتقاد لوړ دی، خو حداقل باید پر دې لوی انسان منطقي نقد وسي، نه عقده یې.

د پښتنو د کار موسم فصلي زراعت او رمې وې، تر دې وخت ور هاخوا به ټول پیتاوي ته ناست ول، د پیتاوو د ناستي په نتیجه کي به جنگونه او شرونه هم ځني پیښېدل، باچاخان مرحوم اول خپله کسب زده کړ، هغه د گوړي کاروبار څکه پیل کړ، چې افغانانو ته دا وښیي چې کار کول یوازي د هندوانو کار ندی، بلکي هر قوم که ترقي غواړي، باید تعلیم، کار او تجارت وکړي، په دې کار سره ځیني شتمن او خانان له باچاخانه څکه خپه سول چې دی زموږ رنگ را بدوي، د خانانو سره کار خوند نه کا، خو دوئ خبر نه ول، چې ددې لوی انسان هدف ددې لوی کتلې ژغورل او د بېکارۍ محوه وه، څکه بېکاري بیرانکاریاني زیږوي، بېکاري تشدد ته رشد ورکوي او بېکاري د انسان ژوند خوري، اول ئې کار له څانه پیل کړ او بیا ظې نورو ته وویل چې د انگرېز ماته په پیتاوي نه کیږي، تعلیم وکړئ، کار وکړي او څانونه خودکفا کړئ، انگریز خپله ماتیږي....

جالب تصادف دا دئ، چې د تشدد په وجه موږ هره شپه له وینو سره ډوډۍ خورو، افغانان یو د بل وینو ته سترگي - سترگي دي، په هره واقعه کي په سلهاوو انسانان زخمي او قتل کیږي، د بېکارۍ په وجه مو څوانان د پردو لمنو ته څان اچوي، ټولنیز اخلاق ورځ په ورځ مخ پر نزول دي؛ زما په نظر موږ تر بل هر زمان نن سبا د عدم تشدد دې اعظمي لاري ته اړتیا لرو، زموږ ټولي ستونزي باید د ډیالوگ له لاري حل سي، هر کله که مو دا کار وکړ، د باچاخان روح به خوشحاله - خوشحاله سي.

د مطالعې په برخه کي، زموږ ډیرو لیکوالو خپلي اتوبیوگرافۍ لیکلي دي، زه په پوره ډاډ وایم، چې تر اوسه د باچاخان په شان اتوبیوگرافي په پښتو کي نده لیکل سوې. یو ځای مې ولوستل، وای که چا سینوهه نه وي لوستی، دا مانا چې هیڅ مطالعه نه لري، خو زه وایم که چا د باچاخان (زما ژوند او جدوجهد) نه وي لوستی، یو خو یې مطالعه کمزورې ده او بل د یوه لوی انسان له لویو ارمانونو ناخبره دئ، څکه د باچاخان هره کرښه په بیا - بیا لوستلو ارزي....

زه د کندهار د اطلاعات و فرهنگ د رئیس معزز بریالي څخه تشکر کوم چې په دې حساس تاریخي پړاو کې، ددې لوی انسان د ۳۰ تلین په پار غونډه نیولې ده.

د باچاخان لار دي ودانه وي

پوهيالی عبدالواحد کالون

# پاچا خان؛ ملي هويت او ملي ژبه

په پښتني مشرانو کي ښايي پاچاخان هغه يوازينی ملي مشر وي، چي د پښتنو ملي موخي او ګټي ئې د بل هر مشر په نسبت په واضح ټکو او روښانه توګه بيان کړي او په عمل کي ئې د هغو د لاس ته راوړلو لپاره وياړلې مبارزه کړې وي .

پاچاخان د همدغه موخو لپاره اوږده موده د انګريزانو و روسته د پنجاب په زندانونو کي تېره کړه، چي د نړۍ پرمخ کوم بل مشر د خپل ولس لپاره دومره کړاو نه دی ګاللی. د افغانانو دګاندهي (پاچاخان) بله لويه ځانګړتيا دا ده چي د داسي پېچلو مسئلو د حل لار هم په عدم تشدد (نه زور زياتي) کي ويني او افغانان هم په سيمه او نړۍ کي دښه ژوند دبسيا لپاره په همدغه فکر سمبالوي.

افغانانو په تېرو څلورو لسيزو کي د تشدد ډېر سخت شرايط تجربه کړل. د تشدد دا بهير په داسي يوه ټولنه کي پېښ سو چي خلک ئې د عدم تشدد د مبارزې له ديني او تاريخي ريښو سره تړلي دي.

بناءً افغانستان او سيمه اوس هم دافغانانو د وياړ د عدم تشدد، پرمختګ او سوله ييزګډ ژوند اندو او انديښنو ته اړتيا لري اوس په افغانو او د سيمي په پوهانو پوري اړه لري، چي د افغانانو دملي مبارز او مفکر د ژوند بېلا بېل اړخونه تر پخوا زيات راوسپړي او د هغه د اندونو په رڼا او مرسته د افغانستان د روان کړکيچ حل لار او د سيمي د ناورين څخه د وتولار پيدا کړي.

دلته دخان بابا هغه دوي خبري را اخلم چي له نن څخه پنځوس کاله وړاندي په يوه ښوونځي کي ئې د وينا پر مهال کړي.

«لومړۍ خبره مي دا ده زه يو وخت بريتانيا ته تللی وم هلته مي په يوه ښار کي له يو سړي نه پوښتنه وکړه، چي ته په قوم څوک يي؟ هغه په ځواب کي راته وويل چي زه انګريز يم. په بل ښار کي مي له بل تن څخه وپوښتل چي ته په قوم څوک يي، هغه هم وويل چي انګريز يم او داسي ډېرو نورو هم يوشان ځواب راکړ. بيا

کله چې فرانس او جرمن ته ولاړم، هلته هم د فرانس او جرمن هر وګړي ویل چې زه فرانسوی او جرمنی یم.

خو کله چې زه دلته افغانستان کې پر ولایتونو او بېلا بېلو سیمو وګرځېدم او له خلکو مې وپوښتل، یوه راته ویل چې زه ازبک یم، بل راته ویل زه تاجک یم او بل راته ویل زه پښتون یم او داسې نور نور. بچوړو دا خبره سمه نه ده. هر څوک چې په افغانستان کې اوسېږي هغه افغان دی. موږ او تاسو ټول افغانان یو.

دویمه خبره دا ده، زه په کابل کې حبیبې لیسې ته تللی وم. هلته مې د یوه شاګرد نه پوښتنه وکړه، چې ته په قوم څوک یې؟ هغه راته وویل چې زه افغان یم. ما ترې بیا پوښتنه وکړه چې په افغاني ژبه پوهېږې؟ هغه زما په خبره پوه نه شو او ځواب یې رانه کړ نو زه تاسو ته وایم چې که یو قوم په خپله ژبه پوه نه شي او خپله ژبه هیره کړي، هغه قوم ډېر ژر د دنیا پر مخ له بربادۍ سره مخامخېږي. ژبه د یوه قوم د هویت څرګندوی ده.»

رښتیاهم دملي هویت په ټاکلو کې د اکثریت قوم هویت مهم رول لري، دملي هویت ټاکل او عمومیت ورکول یوه داسې اساسي موضوع ده، چې بېله هغې نه د ملي ټولني جوړول ډېر ګران دي، همدارنګه تر څو پورې چې ملي هویت ته عمومیت ور نه کړل شي دهیوا د دبېلا بېلو قومونو تر منځ یووالی هم ګران کار دئ، هر کله چې دملي هویت موضوع حل شوه بیانو د افغانستان ټول قومونه په یوه سیاسي سنګر کې د ارزښتونو لپاره په ګډه مبارزه کولی شي، په دې ارتباط د ژبې موضوع هم خورا مهمه ده، ملي ټولنه ملي ژبې ته اړتیا لري، چې په هغې باندې د ټولني ټول قومونه یو له بل سره مفاهمه وکړي، ملي ژبه دملي ټولني په جوړېدو کې لوی نقش لري، هغه ټولني چې ملي ژبه نه لري هلته ملي وحدت کمزوری وي، کله چې د ملي ژبې موضوع حل شي په هغو هیوادونو کې اقتصاد، معارف او هم په نورو اړخونو کې پرمختګ را منځ ته کېږي. په هغو هیوادونو کې چې دملي هویت موضوع نه وي حل شوي په نورو سیاسي ساحو کې پر مختګ نا شو نی دی.

وروسته له ډېرو کلونو اوس هم، د خان صاحب یادي شوي دواړي خبري (ملي هویت او ملي ژبه) د هر افغان لپاره د ملي کړنلارې حیثیت لري او دپاچاخان داندونو بیا اړتیا یو مهم سیاسي ضروت دی.

د افغانستان، سیمې، سیاسي ډلې، پوهان او سیاسي شخصیتونه باید په دې برخه کې دپاچاخان له نظریاتو ژوره استفاده وکړي.

که پښتانه اوس هم د پاچاخان د خپلواکۍ مبارزې او کارنامو ته مراجعه وکړي، د ډېرو ناخوالو او پیچلو سیاسي غوټو د حل ځواب میندلای شي.

نجيب الله هوتکي

# ها چي مذهب ئې نه تاوتريخوالی وو

ژوند د مرګ امانت دئ، مرګ راسي او خپل امانت له چا څه د مخه تر وخت او له چا څه پر وخت، که څوک خوښ که نا خوښ وي امانت يو سي، څوک لکه زرد که په مځکه ومنډي هلته خاوري هغه ئې ځای هلته ورک سي نه ياد سي او نه د چا په ياد سي، خو ځيني بيا د زني په شان په مځکه کي داسي ښخ سي، چي په مځکه کي شين سي، ژوندی سي، مځکه ورته ساه، ورته مور ئې د پاللو سي، را لوی سي، فصل سي، پوخ سي، د پخو دانو هره دانه ئې د خلکو د زړونو پر مځکه وکرل سي، هلته ئې ځای سي تر اخرته، هلته امام سي د لمونځونو، نارينه او ښځينه ئې اقتداء سي، ورته ګران سي پر ايمان.

هو! داسي سړی د زماني مور کله – کله زيږوي، خو افسوس چي موږ ئې په عظمت پس له مرګه د عظمت په اقرار ژاړو.

راځئ پر دې کمي د ځان او دلته پر دې جاري دستور اقرار سو، دا کمي پوره کړو، په ژوند يو بل ته لاس سو، سو به قدر، د خدای راکړو قدرمنو، چي څه وايي هغوی ته غوږ سو، د هغوی لار و ځانته لار کړو، په عمل کي ئې ثابته د خپل ځان کړو، د الله د رحمت به توی سي پر دې مځکه، ستړيا به کډه وکړي، ميلمنه به خوشالي سي د دې کنډو – کنډو کورونو، دا ستړيا مو له از له څخه نه ده، دغه ټوله زموږ له لاسه، نه مو مشر ته غوږ اينښی نه مو کشر ته ويلي، چي دا مشر نو په دې وجه نازل دغه افت دئ، چي د خدای بي اجازې پر سي سرونه بيا نو ژاړو چي دا ولي؟

او ها څه سو!

هغه چي په ليدلو د خندا به د خلکو تبسم سو، له ځان سره به ګډ سو، شکر به ئې ويوست، اندامونو به ئې هم الحمد لله ورسره مله کړه په ويلو.

ها چي تل به د وطن او د اولس د ابادی په فکر ډوب وو، ها چي د امن سينوهه وه، ها چي هره خبره ئې او به – او به وه او زړونو ته به توی سوه، ها چي بيده به ئې راويښول او بې سده به ئې سد ته راوستله، ها چي وقار ته ئې اسمان هم ګوته په غاښ وو، ها چي تقوا ئې هم له کرداره او هم له ګفتاره توئېدله، ها چي ازادي تر هر نعمت ورته سپېڅلې او درنه وه، ها چي خبري ئې د خدای او د رسول کولې، ها چي د زکات د ورکړي فتوا ئې څه پر مسکين څه پر ملا وه، ها چي مدارس ئې جوړ کړه، ها چي د اتفاق په نيت ئې چا ته کاکا چا ته لالا ويله، ها چي اتفاق ئې وغوښت، ها چي اتفاق ئې هم مقصد هم ئې ايمان وو، ها چي په تګ ئې تر هري جونګړي او هره کوره له لره بيا تر بره پښې سوې تڼاکي، ها چي کار ئې د هر ځوان، زاړه، او هم پاخه ته ښايست او زينت باله، ها چي خانان ورته په خاني ګوته په غاښ پاته وه، ها چي خبره ئې سپينه د زړه له تله کوله، ها چي مذهب ئې عدم تشدد وو، ها چي هر چا ته ګران وو، بس کوثر وو، په خير بدل وو، ها چي خوب ته

په طلاق وو او هر وخت د افغان د هوسايۍ او ابادۍ په فکر ډوب وو، کاشکي زه وای تر جار سوی، په رښتيا چي لويه تکيه وه هر افغان ته، ها چي زموږ له لاسه ووت، خدای خبر چي دا تاوان به کله موږ پوره کړو، هغه چي د افغاني اويجي پر مخ د هر افغان د مړي په ليدو به ئې د (بای ذنب قتلت) د چيغو چيغي وهلې.

ها ملګرو هغه څه سو!

هغه چي د پټي خولې له پټي ئې هم د نصيحتونو نصيحت ز ېږېده.

هغه چي د هر افغان د زړه په کلي کي همېش به کليوال پاته وي.

هغه چي د پښتنو لفظونو په کارولو ئې هر پښتانه په زړه کي د خوښۍ ګوړي ماتولې.

هغه چي د کتو هر کاته ئې کتاب ـ کتاب خبري درلودې.

هغه چي له کليوالو سره کليوال، خو د ښاريانو سره ببخي د ښار په شاني ښاري ښکارېده، ها چي دنياوالو ته ئې د عدم تشدد سبق پر ېښود، ها چي لر او بر ورته د يوه مخ دوې ستر ګي ښکارېدې.

هو، هغه څه سو! ها د مهربان پلار په شاني پلار، ها ملي مبارز، ها چي په مبارزه کي ئې هيڅ ظالم ته سر ټيټ نه سو، ها چي تر د ېرش ئې ډېر کلونه په جېلخانو کي تېر سوه.

هو! ها پاچا خان درښيم، نو راسئ ټول يو قسم په الله جل جلاله وکړو، چي د پاچا خان د نصيحتونو هر نصيحت به ځانونو ته د لاري په لار بدلوو او د شهيدو ارمانونو هر ارمان ته به ئې خپلي ساګاني په ځان ورکوو، څو ارمانونه ئې ژوندي سي او په شکرانه ئې راته ارواح دوعا ـ دوعا سي. ارواح دې ښاد وي.

په رښتيا چي پاچا خان د پښتنانه قام هغه خادم وو، چي د خدمت په پور به ئې هر پښتون تر اخرته په پور پاته سي، خو کاشکي د نعمان په شان دغه د ازادۍ د مذهب نعمان په خپل وخت کي د عدم تشدد دونده ډېر خيال نه وای ساتلی، دا ځکه نه پخوا او نه اوس هيچا و هيچاته په رضاء هيڅ هم نه دي ورکړي، بلکي چا د لړ او چا هم د ډېر زور په بدل کي ځانته حق اخستی.

زه د عدم تشدد فکر منم او پر ځای ئې هم بولم، خو دومره نه، چي د عدم تشدد په نوم مي مقصد له لاسه ووزي، اولنو هم داشان ويلي چي «مه دومره خوږ سه چي ثوک دي وخوري او مه هم دومره تريخ سه چي ثوک دي وغورځوي» د خدای هم دغه اصول دي، او وايي:

وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُولَةً إِلَى عُنُقِكَ وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ فَتَقْعُدَ مَلُومًا مَحْسُورًا. (سورت الاسراء: آيت۲۹)

ژباړه: مه دې لاسونه تر خپلي غاړي تړلي ساته (له ورکړي لاس مه راتموه) او مه ئې په بشپړ پرانستو سره پرانېزه، داسي چي (سبا ته) ملامت و ګېل سې او حسرت دربادي وسي.

دا خبره مي ځکه وکړه، چي د پاچاخان سره له اوله بيا تر اخره هم د فکر او هم د بازو دونده قوت وو، چي د هغه وخت له حکومت او فوج سره موجود نه وو او حالات د پاچاخان په ګټه بر ېښېدل او په لړ تاوان پاچاخان ډېره ګټه کولای سوای، هو! دا خبره بيا تکراروم چي په دنياکي عموماً خو په اسيا او په دې منطقه کي خصوصاً په رضاء چاته هيڅ هم نه رسېږي، د سياسي هوار سترخوان پر مخ څه ترخو ته ضرورت دئ.

حیات الله رفیقي

# د سیاسي او ملي مبارزینو ویناوې و خپل اولس ته لوری ورکونکې دي

کوم وخت چې د یوې ټولني د سیاسي او ملي مبارزینو په رښتین والي باندې هغه ټولنه داده سي، نو د هغو د ژوند بهیر د سیاسي او فرهنګي یون د حوادثو او ویناوو راسپړل ډېر ښه معیار ګڼل کېدای سي؛ ځکه چې کوم څوک چې د خپل ژوند په دوران کې د ظلم او تېري په وړاندې ئې د مبارزې او مجادلې توغ اوچت ساتلی دی او د خپل هیواد دخپلواکۍ او د اولس د سوکالۍ لپاره ئې ژوند وقف کړی دی، چې له نېکه مرغه زموږ ځلاند او ویاړمن پنځه زره کلن کړکیښ په خپله پراخه او درنه لمن کې ډېر داسي اتلان رانغښتي، چې د بېلګې په توګه ئې د یوه ملي او سیاسي مبارز د عدم تشدد د فلسفې او د هند د نیمي وچې د پېژندل سوي، شخصیت خان عبدالغفار خان یادونه کوم او لومړی به د ده د ژوند تګلاره په لنډه توګه راوسپړو او بیا ئې څو ویناوې د بېلګې په توګه راوړو.

د پاچا خان د ژوند تګلاره؛ د خلکو خدمت، چوپړ او هم د ټولني اصلاح وه، هغه په لومړي سر کې د ټولني د سمون په لاره کې په وګړنیزه (اولسي) توګه د خلکو خدمت یا چوپړ ته ملا وتړله او د خپل ژوند تګلاره ئې د عدم تشدد پر بنسټ عیار کړه.

هو! پاچا خان هغه وخت د عدم تشدد لاره ونیوله، چې په ټوله هند او پښتونخواکې د انګرېزي استعماري حکومت سلطه وه او کله نا کله به ې لاسونه زموږ پاکي خاوري ته هم را اوږدوله.

پاچا خان په همدغه سې حالاتو کې خپل ښوونیز و روزنیز اصلاحي پروګرام د عدم تشدد پر بنسټ راپیل کړی، چې په همدې وخت کې نه یوازې داچې دا کار مشکل وو، بلکې ناممکن هم وو؛ دا په دې مانا، چې موږ په خپل تاریخ کې د پیر روښان د وخت تجریبه لرو، چې په وړاندې ئې ډېرې ناوړې ستونزې رامنځ ته سوې، خان عبدالغفار خان هم د دې لارې د سرته رسوولو لپاره دیني، مذهبي او اخلاقي لارو څخه کار اخستی، خو د وخت د شرایطو په نظر کې نیولو سره جوخت پاچا خان خپله وایي: «ما د عدم تشدد لاره د قران عظیم الشان او د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د ژوند د بهیر څخه زده کړې، چې د صبر او استقامت یو بې ساري مثال دئ.» پاچا خان به ویل «اسلام د عمل، یقین او محبت نوم دئ.»

پاچا خان به خپلو خلکو ته ویل: «د خدای جل جلاله د خدمت لپاره ملاوتړئ او بیا دا روښانه کړئ، چې د خدای د مخلوق خدمت د خدای جل جلاله خدمت دئ.»

په هر صورت خان عبدالغفار خان د لوی - لوی تاریخي ویاړني او کار نامې پرې ایښي دي؛ لکه د

انګریزي استعمار څخه د هند د نیمي وچي د خپلواکۍ د خپلو مبارزو د لاسته راوړلو په لړ کي او هم په لره پښتونخواکي د خدايي خدمتګارانو د تحریک چلول د ژوند تر اخیرنۍ سولګۍ پوري او یو زیات شمېر نوري تاریخي کار نامې ئې تر شا پرې ایښي دي، که ئې دلته راسپړو یو خو د نن ورځي د ده د یاد غونډي په تنګ وخت کي د ویلو امکان نسته او بل نور دوستان هم د ویلو ډېر څه لري.

خو په ډېر مختصر ډول باید د پاچا خان ولاندي ویناوو ته اشاره وکړم:

فخر افغان خان عبدالغفار خان وايي: «په کوم قوم او ټولنه کي چي د اوبو او بارانو سېلاب راسي، که چیري د همدې قوم او هیواد خلک ویښ وي، د غفلت په خوب نه وي بیده نو کېدای سي، چي د دې سېلاب څخه د خپل هیواد او اولس په ګټه کار واخلي، که چیري د دې هیواد خلک غافل او لېټ وي بیا نو خدای جل جلاله دي خیر ورته پېښوي، دا طوفاني او به بې سر او مال دواړه یوسي، دا سېلاب که د اوبو وي او که سیاسي وي.»

بل ځای بیا پاچا خان پښتانه سکني ورونه ګڼي او داسي وايي:

«لر او بر پښتانه افغانان ټوله سکه ورونه دي، د ډیورنډ کرغیړ نه کرښه پر نګیانو په زوره کښلې ده، خو دا کرښې او تارونه پښتانه یعني سکني ورونه نه سي بیلولای دا ځکه چي زموږ ملتونه کرښې، جالونه او دېوالونه نه سي بیلولای.

ښکیلات ګرو فرنګیانو پښتنو ته د ناپوهو او جاهلو خلکو په نظر کتلي دي، کله چي بیا دوی ته اړ سوي دي، نو ښه لمانځلې، ښه خوراکونه، ښه د عزتونه او ښه دولتونه ئې ورکړي دي، خو په مجردی، چي ضرورت ئې رفع سوی دئ نو بیائې شړلي او ان د انسان سترګه ئې لا هم نه دي ورته کتلي او سر ببره پردې د دوی پر حقه حق ئې پښې ایښي دي.»

بل ځای خان عبدالغفار خان د افغانانو د بې اتفاقۍ په اړه داسي نقد کوي:

«نو که چیري امریکا ته ولاړ سو او د هر امریکایي وګړي څخه تپوس وکړو، چي ته څوک یې؟ نو هغه به فوراً جواب راکړي چي زه یو امریکایي یم او که هم بل هیواد، مثلا روسې ته ولاړ سو او همدا پوښتنه ځیني وکړو، هغه به هم بېله درنګه درته وايي چي زه روس یم. خو کله چي په افغانستان کي له یوه کس څخه وپوښتي، چي هلکه ته څوک یې؟ نو هغه به درته وايي چي زه پښتون، تاجک، هزاره، ازبک او یا به د یو بل قوم نوم درته یاد کړي، یعني یو ډول نه یو ډول به ځانونه یو له بله بېلوي، چي همدا د دې هیواد د خلکو او د ولسونو د بد بختۍ بیلتون او ځان ځانۍ ښامار خوړلي بېلګي دي، چي د ټولي نړۍ تر هیوادو وروسته پاته هیواد بلل سوی دئ.

د بېکارۍ، فقر او ذلت سره مخامخ دي، نو لازمه او اړینه خبره به دا وي چي ځانونه افغانان وبولي او ټوله شته قومونه ځانونه یو ټبر او ورونه وبولي او د خپل هیواد د ابادی او ملت د سوکالی لپاره ملا وتړي.»

په اخر کي زه خپله دا لنډه لیکنه په دې لاندي نظمیه جملو پای ته رسوم.

نن موږ د سرېتوب ستره ککره نه لرو
چي منزل ته په رسېږو هغه لاره نه لرو
چي ورکي څه موسم کړي هغه چاره نه لرو
موږ افغانان خپلو منځوي خبره معماره نه لرو

محمد یار یار

# له سُرخپوشانو تر سور خولیو

# د عدم تشدد حقانیت

د پاچاخان له سرخپوشانو، د منظور پښتین تر سور خولیو پوري داستان خورا خونړی او زړه خوړونکی، خو په عین حال کې جالب، د غور وړ او د زمان تر ګردو لوی ضرورت دئ؛ جالبوالی ئې په دې کې دی، چې د دغه طرز فکر او طرز مبارزې په زمینه کې، د دغه سیمي ولس، چې حتمي ځانګړنې ئې ننګ، غیرت، توریالیتوب، مېړنتوب، زمریتوب، زیړتوب، سربازي، سرشاري، نه تسلیمي، نه تیښتوب او... دي او دا ځانګړني ئې د توري و توپک، چړې و سېلاوې او چاقو و برچې په شتون کې ثابتېدای سي؛ له همدې ځایه، د دغه ملت په جمعي ذهن کي وسله د یوه پښتانه زلمي ګانه ګڼل شوې؛ تاسو پوهېږی، چې زموږ د کلاسیک و معاصر ادب یو برجسته مضمون، له جنګ سره عشق، له خونریز سره شوق او له ناتمام پیکار سره کار دئ؛ تاسو ګورئ، چې زموږ د ادبیاتو اولین مالوم شعر یوه خونخوره حماسه او د دغسي پیکار یو شهکار دئ؛ دا حماسه امیر کروړ ویلې ده؛ کروړ مانا کلک؛ دا کلک د یوه بل کلک (امیر پولاد) زوی وو؛ دوی د غور د غرونو غیرتي اوسېدونکی ول او غرونه خو هم د کلکوالي او نه ماتېدو سمبولونه دي؛ وایي کروړ دومره کلک وو چې په یوازې سر به له سلو جنګاورو سره جنګېده:

زه یم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نسته
پر هند و سند و پر تخار و پر کابل نسته
بل پر زابل نسته
له ما اتل نسته

او تر پایه د دې خونړۍ اتلولۍ د داستان ادامه...

زموږ د ادبیاتو د دوهمي دورې پیل، لا جالبه دی، که څه هم زمینه ئې عرفاني ده، خو د عرفان په دې عمق – عمق کې ئې، د پیر روښان د کورنۍ خونړۍ لړۍ په خوځېدو ده او د دې دورې، د دوهم پړاو پاچا – خوشحال خان خټک دی؛ ور ته اریان دریان به شې، چې دا د منحصر بفرد نبوغ حقیقت له کومه ذاته دی؛ د نورو هېښوونکو مضامینو تر څنګ، یو د خونکار پیکار شهکار دئ، چې د لېونتوب تر سرحده، په هیڅ لوړه و ژوره بند و واز نه دئ؛ لکه د آتشفشان انفجار، لکه د جهنم لمبه او لکه د وینو سېلاب:

پښتنو زلمیو بیا لاسونه سره کړه
لکه باز منګولي سرې کا په خپل ښکار
سپیني توري یې ګلګوني کړې په وینو
په اهار کې شګفته شو لاله زار
درست پښتون له کندهاره تر اټکه
سره یو د ننګ په کار پټ و آشکار
پښتانه چي نور څه فکر کا ناپوه دي
بې د توري خلاصي نشته په بل کار

يا:

څــو وا نــه خلــي لــه غليمــه انتقــام
مرد نه خوب کا نه خوراک کا نه آرام

ياهم:

په خپل نام و ننګ چي راشم لېونی شم
خبردار کله په سود و زيان دلک يم
د افغـان پـه ننـګ مـې وتړلـه تـوره
ننګيالی د زمانې خوشحال خټک يم

زموږ د ادبياتو د معاصري دورې په سيند کي هم ويني بهيږي، بېلګو ته ئې څکه ضرورت نشته چي موږ ئې په پنځو حواسو درکوو او د دې خوني تجربې دا تمرين مو لا په ډېر شدت سره دوام لري او زموږ فولکلوري آرشيف هم له دغسي خونبارو باورونو څخه مالامال دئ، هغه چي زموږ د جمعي ذهن تر ګردو معتبر و مستند ريفرنس دئ:

تر دې بوري توپک دې جار شم
پر اوړه ستا دی کېږه زه د خياله څمه
توتې – توتې په تورو راشې
د بې ننګۍ احوال دې را مه شه مينه
که په ميوند کې شهيد نه شوې
خدايږو لاليه بې ننګۍ ته دي ساتينه

او....

پاچاخان زموږ په پراخه بشري جغرافيه، په تېره بيا افغانانو کي، هغه اولين عظيم الشان شخص وو، چي زموږ د عمومي اجتماعي خصلت په مخالف جهت کي ودرېد؛ هغه په يوازي سر، غوښته چي د يوه تاريخي ملت د خشن او زيږه خصلت د خروښنده سېلاب رُخ بدل کاندي او د زغم و نرمۍ په يوه آرام سمندر ئې واړوي؛ دا د ناممکن تر بريده يو تلاش وو، خو دې استثنايي انسان، سوليز – ټولنيز انقلاب او د عدم تشدد مبارزه، هم انساني لار وبلله او هم ئې د خپل بېرحمه و انتهايي ظالم دوښمن په وړاندي عاقلانه و بريالي ميتود وګاڼه؛ عجبه ده چي هغه د دغي ګټوري انساني هڅي الهام د اسلام د زغم له سمبول پيغمبر څخه اخيستی وو؛ داسي چي هغه يو وخت د عربستان د طائف، د يوه سفر، په زړه پوري خاطره را ته وايي:

«يوه ورځ مي يوه عجيبه پېښه وليدله؛ کله مي چي د ښار نه د باندي چکر وهلو، يو اوږد ږيری سړی مي وليد چي ګلدوزي شوې چپنه ئې (اغوستې) وه او په ما پسي ئې نارې کړې: (اې شيخه، دلته راشه!) کله چي ور نژدې شوم نو را ته ئې وويل: (زه کولای شم تا ته د پيغمبر صلی الله عليه وسلم د ږيرې ورېښته او يوه تېږه، چي د هغوی پل ور باندي نقش شوی، در وښيم) ما په ځواب ک ور ته وويل: (زه دلته د آثارو د ليدو لپاره نه يم راغلی، بلکي د دې لپاره راغلی يم چي د پاک پيغمبر صلی الله عليه وسلم حوصله و زړورتيا وګورم، چي څرنګه له مکې معظمې څخه په دې دښته کي طائف ته د خلکو د مرستي لپاره راغلی وو او څنګه د طائف خلکو د ده هرکلی وکړ؟) هغوی پيغمبر صلی الله عليه وسلم په ډبرو وويشتلو، سپې ئې ور پسي وشکېرل او هغه ئې وواهه خو سره له دې ټولو تاوتريخوالو، پيغمبر صلی الله عليه وسلم له خلکو ناهيلی نه شو او هغوی ته ئې داسي دعا وکړه: (اې الله جل جلاله! د دوی لارښوونکی شې او ستا پر لار ئې برابر کړې)» (زما ژوند او مبارزه: ۹۰ – ۹۱)

هېښوونکې ده چي د ده خپل ځيني ملګري او د کور نۍ غړي ئې، د عدم تشدد له طريقې سره جوړ نه ول او دا ئې هدف ته د رسېدو عملي لار نه ګڼله خو پاچا

خان په خپل ۹۸ کلن ژوند (۱۸۹۰ – ۱۹۸۸) کې، له دغسې سولییزې انساني لارې څخه منحرف نه شو؛ لا هیښوونکې دا چې نوموړې د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د ژغم پیام دومره ژور درک کړی و منلی وو چې آن هغه پیغمبر صلی الله علیه وسلم چې له مجبورۍ څخه جنګ ته لاس اچولی وو، یا پر تحمیل شوی وو؛ ګاندي جي هم، بالآخره د عدم تشدد مبارزې له اصولو د انحراف مرتکب شوی او نیلسن منډیلا هم، له دې باور سره – سره، چې وینه په وینو نه پرېوله کیږي، خو دا هم له ده را پاته مقوله ده چې کله – کله اوسپنه باید په اوسپنه پرې شي، خو زموږ دې ستر شخصیت، که څه هم نیم ژوند ئې په زندان کې تېر کړ، په ډبرو سنګسار شو، پښتې ئې په وهلو کې ور ماتې کړل شوې، اما هیڅکله ئې هم، نه تاوتریخوالي ته لاس واچاوه او نه ئې هم، خپلو ملګرو یا بل چا ته اجازه ور کړه؛ هغه د عدم تشدد پر معقول روش، د زړه له ژورو باورمن شوی وو؛ هغه د خپل دې باور کیسه را ته کوي:

«زموږ په ایالت کې د آزادۍ غوښتنې دوو غورځنګونو شتون درلود، چې یوه پر تاوتریخوالي او بل ئې پر نه تاوتریخوالي باور درلود؛ د تاوتریخوالي غورځنګ مخکې را منځته شوی وو او له هغه بیا ۴۰– ۵۰ کاله وروسته، په ۱۹۲۹م کال کې د نه تاوتریخوالي غورځنګ په کار پیل وکړ. انګرېزانو وکولای شوای چې د تاوتریخوالي غورځنګ په وړاندې له تاوتریخوالي کار واخلي خو دوی سره له ټولو ظلمونو او بې شمېره نیونو او بندي کولو، بیا هم و نه توانېدل چې د نه تاوتریخوالي غورځنګ له منځه یوسي. د تاوتریخوالي غورځنګ د خلکو په ماغزو کې وېره رامنځته او د هغوی زړورتیا او مورال ئې کمزوری کړی وو؛ خو د نه تاوتریخوالي غورځنګ خلک زړور او دوی ته ئې اخلاقي احساس ور په برخه کړ. د تاوتریخوالي غورځنګ د خلکو په منځ کې کینه او دوښمني خوروله، مګر د نه تاوتریخوالي غورځنګ په ټولنه کې مینه او ورورولي راوستله. د نه تاوتریخوالي غورځنګ د نوي ژوند اړوند مطلبونه وړاندې کول، هغه ژوند چې د دوی ملت او ورورولۍ ته وقف شوی وي؛ دې غورځنګ د خلکو د ټولنیز ژوندانه په ټولو اړخونو لکه: هنر، کلتور او شعر کې د یوه لوی انقلاب لپاره کار کاوه. حقیقت دا دی چې تاوتریخوالي له کینې او کرکې څخه زیږي او نه تاوتریخوالي له مینې څخه را پیدا کیږي. د کرکې یو اصلي لامل د انګرېزانو له لوري بې عدالتي وه؛ د بېلګې په توګه، که چا به کوم انګرېز وژلی وو او و به نیول شو، نو دوی به نه یوازې تورن ته سزا ور کوله، بلکې د هغه پر ټول کلي او سیمه باندې به ئې کړاوونه راوستل؛ له دوی نه به ئې ډېره زیاته جریمه اخیسته، هغوی به ئې نیول او یا هم دا چې بندیخانې ته به ئې استول. طبیعي خبره ده چې خلکو به تورن او د هغه ټولې له تاوتریخوالي ډکې کړنې د هغو ظلمونو او فشارونو اصلي لامل ګڼلې چې پر دوی باندې به کېدل. له بلې خوا، دوی ولیدل چې د نه تاوتریخوالي په غورځنګ کې هر څوک د ځورولو او بې ګنا خلکو ته د زیان رسولو له مخنیوي څخه ستړي شوي دي؛ هغوی ولیدل چې زموږ غورځنګ یوازې د هیواد له ټولنیزې هوساینې سره مینه درلوده او له همدې امله ئې ور سره همدردي کوله؛ همدا لاملونه ول چې د تاوتریخوالي تحریک ناکام او د نه تاوتریخوالي غورځنګ بریالی شو. د هیواد آزادي یوازې د نه تاوتریخوالي له لارې لاس ته راتلای شوای او یوازې له همدې لارې کېدای شوای، چې

انګرېزان لــه هیــواده وشــړل شــي. خــو د خــدایي خدمتګارانو غورځنګ یوازي یو سیاسي غورځنګ نه وو؛ سربېره پر دې چي دا د پښتنو یو سیاسي ګوند وو، د یوه معنوي تحریک حیثیت ئې هم درلود؛ دا یو داسي غورځنګ وو چي پښتنو تـه ئې د مینې او ورورګلوۍ درس ور کاوه او په دوی کي ئې د یووالي او هیوادپالني احساس او د خدمت کولو لېوالتیا را منځته کوله. پښتنو په خپلو منځونو کي د تربګنۍ عادت درلود؛ مخالفتونو او دوښمنیو د هغوی کورونه او کورنۍ تبا کړي وې؛ دا ټولي ناخوالي د نه تاوتریخوالي غورځنګ له لاري له منځـه ولاړې؛ انګرېزانو بـه ویـل: (هغـه پښـتون چـي تاوتریخوالی نه کوي، د هغه پښتون په پرتله خطرناک دی چي تـاوتریخوالی کـوي.) همـدا لامـل وو چـي د ۱۹۳۲م کال په بهیر کي انګرېزانو پر موږ باندي بې شمېره ظلمونه وکړل؛ له دې ټولو نیونو، بندي کولو او نورو بې شرمانه کړنو څخه د هغوی یوازنۍ موخه دا وه، چي پښتانه تـاوتریخوالي تـه ولمسوي خـو خپلـي دې ناوړه موخي ته و نه رسېدل. زه به تاسو ته په دې اړه یو څو بېلګې بیان کړم تر څو روښانه شي چي دوی له څه رنګه وسایلو څخه کار اخیست:

انګرېزانو به له پښـتنو څخـه جامې وایستلې؛ کلـه چي خدایي خدمتګارانو په چارسده کي غونډه کوله نو انګرېزانو حکم ور ته وکړ چي خپلي جامې وباسي، بیا به ئې د دوی خصیې کلکي سره وتړلې او په زوره بـه ئې کش کړې، کله چي به ئې له درده ضعف وکړ نو بیا به ئې د متیازو او غایطه موادو ډنډ تـه ور و غورځول... د دې په څېر نوري بې شمېره د بې رحمیو، بې شرمیو او په سپکه کتلو بېلګې هم شته چي ځرګندول ئې د قلم په څوکه امکان نه لري.» (زما ژوند او مبارزه: ۱۵۳ – ۱۵۶)

رشتیا هم، که زموږ لوستی نسل د پاچاخان او د ده پر انسـاني لارروانـو لارویـو د ژونـد و مبـارزې تفصـیلات ولـولي نـو اریـان بـه شـي چـي څنګه ممکنـه ده، چـي د پښـتنو پـه ډېر زیږه و تـاوتریخجن طبیعـت کـي دي، د همدې قوم له منځه، داسي په انسانیترین طرز فکر سمبال انسانان پیدا شي، چي د هغسي نه باورېدونکو کړاوونـو پـه زغـم سـره دې خپلـي سیاسـي- ټـولنیزي مبارزې ته د ژوند تر پایه، په نه ماتېدونکي هوډ سره دوام ور کړای شي! ځیني کسان پاچاخان د عدم تشدد طرز مبارزې پر مسیر ناکام ګڼي؛ وایي چي عدم تشدد یوه ډارنه و بې ګټې طریقه ده؛ د دوی په باور، دې ډول مبارزې هیڅ فایده و نه کړه، که ئې متشدده و وسلواله مبارزه کړې وای نو نن به د دې قوم ژوند بل ډول او ښه وای، ځکه دوی نن هم، د خوشحال خان پر پرونۍ لار، باور لري:

پښتانه که بل څه فکر کا ناپوه دي
بې له توري خلاصی نشته په بل کار

خـو د پاچاخـان د سـولییزي مبـارزې پـر لار، کـه د هغـه پـه ژونـد کـي، د هغـه د قوم د یوې برخـي لـه خـوا نیوکـه کېـده، کـه ئـې د کـورنۍ د ځینـو غـړو لـه خـوا مخالفت کېده، خو هغـه د توري یـا جنـګ لار، د کرکي طریقـه بللـه او دا لار ئـې، چـي د ده قـوم تـل پـر تللـی او نتیجه ئې د هغه همېشنۍ بربادي را وتې وه، ناانسـاني وګڼله، رد ئې کړه او د عدم تشدد روده ئې، د یوه انساني بـدیل پـه توګـه را وړانـدي کـړه؛ د دې لاري پـر مثبتـو نتـایجو بحـث و تحقیـق، د یـوه بېـل تفصـیل ضـرورت ایجابوي خو زه ئې یوازي و یوازي، یوه لاس په لستونې او جانانه نتیجه ستاسو مخ ته ږدم، په دې هیله چي سر مورا خلاص کـړای شي چي د پاچاخـان د عدم تشـدد هلـي ځلـي څنګـه ژغـورونکي، ویـاړمن او ګټـور نتـایج لرلای شي؟ هماغسي لکه انګرېزان چي د پاچاخـان او د

هغه له سرخپوشانو له عدم تشدد مبارزې څخه تر پېزې راغلي ول نو ټيک د منظور پښتين د پښتون ژغورنې غورځنګ د سورخوليو له عدم تشدد پرلتونو څخه پاکستان، د پاکستان اصلي واکداران (پوځ او آی ايس آی) د مرګ تر بريده نفستنګي دي، ځکه دا خو حقبينو انسانانو ته روښانه ده چې د پاکستان وجودي منطق پر تشدد، بې آبی، مرګ ـ ژوبله، تخريب او تعذيب ولاړ دی؛ که دا پديدې ور څخه منفي شي نو بيا خو پاکستان، پاکستان نه پاتېږي؛ پر دې اساس، عدم تشدد، سوليېز حرکت، قانونمنده مبارزه، هسې قانونمنده چې خپله د همدې پاکستان د آئين (اساسي قانون) غوښتنه وي، دا ټول د پاکستان د وجود لپاره زهر قاتل دي؛ افراطيت، تروريزم او شر اچونه د پاکستان ملي شتمني ګڼل کيږي او دا خو څه هسې تور و بې منطقه مقوله نه ده، چې پاکستان زموږ په بشري حوزه کي «سرطاني تومور» ګڼل شوی دئ؛ کله چې انګرېزان د هند له براعظمي څخه وتو ته اړوتل نو د دې لپاره چې له يوې خوائې د دې سيمي ولسو ته د عقدې له مخې، دوامدار درد په ميراث پرې ايښې وي او له بله اړخه ئې د خپلو راتلونکو اوږدمهالو هدفو لپاره زمينه ريزرف کړې وي، نو ئې د پاکستان په نوم يوه ډېره مصنوعي او هر دم شوربدونکې جغرافيه را منځته کړه؛ انګرېز او ستراتيژيک پارتنران ئې، په دې پلان و نقشه کې دومره بريمن شول چې تر دې زيات برې ئې نو بد ايسېده؛ تاسو به نو بله لويه بريا څه ته واياست چې همدا جغرافيه ئې د خپل نړۍ وال دوښمن (شوروي اتحاد) پر مخ، د يوه نه ماتېدونکي سنګر په توګه ثابته کړه او خپل هغه جنګ ئې، چې موږ جهاد باله، د همدې ستر غليم پر ضد، د بريالیتوب هغه بريد ته ورساوه چې شوروي اتحاد ئې له خاورو سره خاوري کړ، ټول زيان ته ئې افغانانو اوږه ور کړه، داسي چې تر ننه د جنګ په دې جهنم کې، نه يوازې سوروالی نه دی راغلی، بلکي لمبو ئې نور هم زور اخيستی دی او مزې

ئې ټولي انګرېز، امريکا، غرب او عرب يووړې؛ دا په داسي حال کي وه چې همدغه عظيم پاچاخان به، د همدغه په اصطلاح جهاد د اوج مهال چيغي وهلې چې اې کم عقلو پښتنو! دا د روس او امريکې جنګ دی، په دې منځ کې خپل ګلالی افغانستان مه تبا کوئ! خو پاکستان به موږ ته ويل چې دا کافر، دا کمونيست او د روسانو ملګری ګوری، چې د کفر و اسلام تر منځ، ستاسو مقدس جهاد ته د روس و امريکې جنګ وايي او موږ به نور هم پر دغه ستر انسان د خپل لعنت بارانونه و اورول او د جنګ دا تاو مو د حرارت هغه سرحد ته ورساوه چې نن څومره هم د پښېمانی اوښکي پر پاشو نو نه يوازې سړښت نه مومي، بلکي لاهم نور او نور پسي دوړخي کيږي؛ تاسو څه فکر کوئ! که مو اول په ۱۳۵۴ کي، د شهيد داؤد خان پر ضد، له روسانو څخه د امريکا له خوا، د ويتنام د ماتي په غچ کي، د ذوالفقار علي بوټو په ټونګ او د هغه له غبرګ جهاد نه وای پيل کړی او خپلې غوښتني مو له سوليېزې لارې په قانونمنده توګه، له هر ډول افراطيته اړخ ته مخته وړې وای نو آيا نن به مو داسي بې حيثيته ورځ په نصيب وه؟ بل سوال دا دی چې که دا نن په افغانستان کې ټول توپکونه وغورځول شي او سوليېزه سياسي مبارزه، د هر خارجي قهر په وړاندې روانه شي، تاسو څه فکر کوئ! چې ډېر ژر او ډېر اسان به له دې بدبختيو را و نه وزو؟ آيا په ډېره سادګي سره د پوهېدو وړ نه ده چې نن بيا زموږ په کور کي جنګ، يو نيابتي جنګ دی؟ او آيا دا نن يووار بيا د امريکې او روسيې جنګ نه دی؟ د سعودي عربستان او ايران جنګ نه دی؟ د چين او امريکا جنګ نه دی؟ د هندوستان و پاکستان جنګ نه دی؟ او ....

منظور پښتين او ملګري ئې ډېر هوښيار او د خپلې زمانې د درک استعداد لري؛ هغوی پوهيږي چې بايد د لوی پاچاخان د عدم تشدد پر انسانيترينه لار حرکت ته بريمن دوام ور کړي؛ ستاسو څه خيال دی چې

پاکستان بـه څومره پـه دې تلوسـه مړ – مړ وي چـې کاشکي د د غـه ژغورونکي غورځنګ د زرګونو غړو لـه خوا، په یوه جلسه، په یوه مظاهره او یوه پرلت کې، آن د یوې ډېرې وار وشي چې د دې جبار ملک بېرحمـه پوځ ته یوه کوشنکه بهانه په لاس ور شي او پر دې غورځنګ د یوه ترووریستي ښورښ په نوم، د نظامي قهر توپان ور خوشې کړي؟ څکه دوی چې پـه کراچۍ غوندي ښار کې نقیب مسید غوندي ماډل، په جعلي مقابلـه کـې، د ترووریست په تور وژلای شي نو آیا پر قبایلي سیمو تر بدو بتر پوځي غوبل نه شي جوړولای؟ لکه جوړ کړی چې ئې دی! او آیـا د همـدغو قبـایلو مـدني جلسـې نـه شي چختاڼولای؟ منظور او ملګري ئې، د پاچاخـان د لارویو پـه توګـه، د پاکسـتان، د هغـه د استخباراتي او نظامي ادارو په ماهیت ډېر ښه پوهیږي چې په یوه عادي خشن حرکت سره هغوی ته ژوند او ځان ته نه جبرانېدونکې تباهي بخښلای شي، څکه خو ئې د اسلام آباد، کوټې، ږوب، کلا سیف الله، پېښور، لاهور، سوات او... غونډو کې، چې د پاکستان د ټول دولت پـه توان، لـه بېسارې مزاحمـت سـره – سـره، زرګونـه انسـانان پکښـې را غونډېدل، د یوې شګې د بېځایه غورځولو پېښه هم نـه شوه پېښه او په دې توګه ئې د پاکستان نفس ور وکیښ خو دا ارمان ئې لا تر دې دمه نه دی ور پوره کړی، چې په یوه معمولي تـاوتریخوالي سره، د پاکستاني پوځ تر تورو بوټو لاندې ځانونه تبا و برباد کاندي؛ پاکستان د قهر په جهنم کې ور ته ایشي خو لاس نه شي ور اچولای څکه د پاچاخانیانو د برحقو وارثانو د ځراکت په برکت، د لاس ور اچوني یوه سپکه پلمه هم په لاس نه ور ځي.

دا خو د عدم تشدد پر اساساتو استوارو، د پاچاخـان د انسـاني تعلیمـاتو منطقي نتیجـه ده چې نن لـه هغو قبایلو څخه، چې هیڅکله د انسانانو په سترګه ور ته نه دي کتـل شـوي، یـو سـولییز لښـکر د انسـانیت پـر پاچاخاني مسیر راځي او د پاکستان ادارې، استخبارات او تر ګردو هیښوونکې ئې لا دا چې پوځ غدار بـولي او پـه جار نارې وهي، په تکرار ئې وهي چې د هر تروریزم، هر طالب، هر دهشت او هر افراطیت شا ته د پوځ لاس دی؛ د هر وحشت شا تـه پـوځي دریشـي ده؛ دا هغـه تصـور وو چې د پاکسـتان پـه خوفناکه جغرافیـه کـې ئې، د هیڅ انسان په ذهـن کـې د خطـور مجـال نـه وو؛ د نـورو ډېـرو بدمرغیو په سلسله کې به، د بلوچستان کوشني اقلیت ـهزاره قوم – بیخي د ژوند حق نـه لاره خـو نـن هغـوی هم پـه واز کومي وایي چې د هـر دهشـت شـا تـه پـوځي دریشي پرته ده.

نن د پاچاخـاني سرخپوشـانو پـر سـولییز مسیر، د منظـور پښـتین د سـورخولیو مـدني حرکـت او د پاکستاني جبر و استبداد پر ضد، دغـسي قانوني بغاوت، که د پاچاخان د ډېرشم تلین پر مهال، د هغه تر رحلت دېرش کاله وروسته، د هغه د لارې د حقانیت ثبوت نـه وي نـو څـه بـه وي؟ پاچاخـاني مبـارزانو بـه د خپـل یونیفـورم پـه توګـه، سـور لبـاس اغوسـت څکـه پـه سرخپوشانو مشهور شول؛ د منظور د سولې عسکر، پـه سرو خولیو سره، دغه انساني و بریمنـه لار لا سُرخرویه ساتي او د دنیا سوله غوښتونکو ولسو تـه، یـو وار بیـا د پاچاخان د برحقې لارې ضرورت و اهمیت ور پـه یـادوي او دا هغه لار ده چې د نړۍ ټول جنګ – ځپلي ولسونه تر هر څه سخته اړتیا ور ته لري:

چې بیا نه توره پورته شي نه سر په وینو رنګ شي
بـاداره دغـه جنـګ دې د وطـن آخـري جنـګ شي

کـه زړونـه سـره یـو کـړو او لاسـونه سـره ور کـړو
دا کـاني بـه لالونـه شـي دا بـوټي بـه لونـګ شـي

درویش دوراني

استاد محمد معصوم هوتک/کاناډا

# د کندهار کتابتونونه او مشهور خطي کلکسیونونه

بیت الاشراف:

دمعاصرافغانستان لومړنی دولتي موزیم ددغه دولت د مؤسس لوی احمدشاه بابا(۱۱۶۰ ـ ۱۱۸۶هـ ق) په لاس په ۱۱۶۸ هـق کال جوړسوی دئ. په بیت الاشراف کي د کتابو برخه هم وه، چي په هغه کي د بابا په اراده راټول سوي او خطاطي سوي کتابونه پراته ول. تردغه کتابتون دمخه موږ د کندهار په تاریخي مېنه او زاړه ښار کي د دوو نورو کتابتونو څرک لرو، چي یوئې د بیت الاشراف موزیم تر جوړېدو دوه سوه پنځوس (۲۵۰) کاله پخوا او دوهم ئې د دغه موزیم تر احداث څه کم دېرش کاله پخوا موجود وو.

د لومړي پخواني کتابتون په باب زموږ معلومات د هغه ډېرین دېګ پر لیکنو باندي ولاړ دي، چي دکندهار د زاړه ښار د سلطان ویس بابا په خانقاه کي پروت وو. علامه حبیبي د "تاریخ افغانستان در عصر گورگانیان هند" د۱۳۸۹ ش چاپ کندهار په ۲۲۸ مخ کي د نواب صمصام الدوله د مآثرالامراء د ۲ / ۶۶۱ مخ په حواله لیکي چي د زاړه کندهار ختیځ ته یوه دروازه د "ویس قرن" په نامه یادېدله او زیاتوي چي په ۱۰۵۸هـ ق کال کي دفارس د لښکرو په مقابل کي د دغي دروازې ساتنه د ښادي خان پر غاړه وه. د"ویس قرن" یا د"سلطان اویس" زیارت اوس هم د زاړه ښار د کنډوالو ختیځ ته واقع دئ. په دغه زیارت کي یو ډېرین دېګ پروت وو، چي داعلیحضرت امیر امان الله خان په امر په ۱۳۰۶ ش کال د کابل موزیم ته یووړل سو. پر دغه دېګ باندي په پنځو برخو (منطقو) کي یوه وقف نامه کیندل سوې ده، چي بشپړ لوستل سوی متن ئې د هماغه کال دطلوع افغان په ۵۴ گڼه (۱۴ جوزا ۱۳۰۶ش) کي چاپ سوی دئ او علامه رشاد (رح) پخپل درانه اثر (دکندهاریادابښتونه)ـ ۱۱۵، ۱۲۰ مخونو کي هم را اخیستی دئ. په دغه وقفنامه کي راغلي دي چي د" سنگحصار، ده روح آباد" مځکي ـ د میوند او کشکنخود تر منځ د" دهک" کاریز او د کشکنخود "چهل گزي" کاریز ـ د "اعلصر؟"، "زنگی آباد(زنگاوات)"، "میخوش (ماهی د زلخان څنگ ته د یوه کلي نوم دئ. م.هـ)" او "همومال؟" کلیو څلور باغونه ـ دننه په قندهارښار کي د" ماشوري بازار" اته

شپېته دوکانونه، ددغه بازار لوېدیځ ته شپاړس دوکانونه او ختیځ ته ئې اووه دوکانونه او دغه راز اووه ویشت نور دوکانونه ـ د ښار په چارسو کې حمام او د دغه ځای ټول کاروانسرایونه و هغې مدرسې ته وقف دي، چې د طالب العلمانو او نورو کارکوونکو له پاره ئې هره ورځ یو خروار اوړه، څلور منه غوښه، دوه منه مالگه، دوه منه بصل (پیاز)، دوه منه حمص (نخود) او دوه منه "جذر وشلجم" حواله کېدل. د دوبي په شپږو میاشتو کې هره ورځ یو خروار ډوډۍ پر مستحقانو وېشل کېده. په هرو درو میاشتو کې ئې پنځه منه دوښا، یو من غوړي او یو من د حلوا اوړه له لس منه پخې ډوډۍ سره بېوزلو مستحقوته ورکول کېدله. د مدرسې هر مدرّس ته د د دوولسو تنو لایقو طالبانو پر تدریس باندې د کاله دوه زره نقد، څلوېښت خرواره غنم، شل خرواره اوربشې ورکول کېدلې. داسې ښکاري چې د طالبانو خرڅ پر مدرس باندې وو. دغې مدرسې یا دارالعلوم کتابتون هم درلود چې "کتابدار" ته ئې د یوه طالب په اندازه معاش ټاکل سوی وو. د مدرسې د مشر توب، د ملاامام، د مؤذن، د اشپز او نورو خدمه وو په باب د ډېرین دېگ پر بېلابېلو منطقو باندې اوږده بیانونه سته چې زما د دې لیکنې موضوع نه ده. پر دېگ باندې د لیکنې تاریخ په یو بیت کې ښوول سوی دئ چې له تاریخي مادې څخه ئې ۹۱۹ هـ ق کال راوزي.

ساخت تاریخ آن بدین تقریب

کاتب العبد "جای شربت آب"

د "جای شربت آب" ابجدي ارزښت ۹۱۹ کېږي البته د (آب) ممدوه الف پر (۲) حساب دئ.

له دې یادونو څخه زما دمقصد ټکی دادئ، چې له نن څخه په قمري حساب پنځه سوه اتلس کاله پخوا په کندهار کې دیوه منظم کتابتون څرک په لاس راځي. داسې کتابتون چې مسئول "کتابدار" لري او د یوې تعلیمي مؤسسې (دارالعلوم) یوه برخه وه. د دغه کتابتون نور کم (کوم) اثر یا کومه نخښه راپاته نه ده.

تر دغه کتابتون وروسته موږ ته پټه خزانه په نارنج ماڼۍ کې دیوه بل کتابتون بیان لري. پټه خزانه لیکي :"پادشاه عالم پناه په ارگ کی دقندهار، هغه قصرچه نارنج باله شی هلته په هفته یوه ورځ دربارکاپه کتب خانه کی، اوپه مجلس کې علما جمع کېږی، او شعرااوفضلاټولوی .... " (پټه خزانه، لومړی چاپ ۱۱۱مخ ۱۳۲۳ش)

په پټه خزانه کې دا هم راغلي دي چې پاچا د رحمان بابا د دېوان له پاره پېښور ته خطاطان ولېږل او څونسخې ئې کندهارته راوړې. د دې کتابتون هم له پټې خزانې پرته بل څه راپاته نه دي. د نارنج ماڼۍ کتابتون د افشار نادر په غدۍ کې د ښار له نورو ودانیو سره له منځه ولاړ.

دافشارنادرپه لاس که دکندهارښاردنگي ماڼۍ له خاوروسره برابري سوې او د دې ښارعالمانو او فاضلانو که د نادري میرغضبانو ترچلاخو لاندې د "نادرآباد" دجوړولوپه اشر کې دختو کاسې وچلولې او نور راز -رازسپکاوي او توهینونه ئې ولیدل، خوهغه ولولې ئې خاموشي نه کړای سوای چې د دغې خاوري دبچیو په زړونو کې د خپل هیواد، خپل اولس او خپل ملي زعامت په باب ایشېدلې. دغه جذبې د ډېر ژر خپل اصلي مسیرته بیرته ولوېدلې اودا وار د هیواد د ملي

زعامت قُرعه د دغي خاوري دیوه اصیل مېړه په نامه وختله. دامېړه، داتوریالی، دافرهنګپال او ادبپال پښتون احمدخان ابدالی وو، چې د خپل اهلیت و شهامت وعلمیت وملتپالنې له خاطره ئې په پښتنوکي د"لوی احمد شاه بابا" لقب وګاټه. داوخت هغه دچاخبره "آب رفته بازآمدبجوی" او کندهار بیا د سیاست و علم ملي مرکزسو. له هند، سندهـ او دپښتونخوا له نوروسیمو څخه علماوو، ادباوو او شعراوو ورته مخ راونیوی او دلته ئې د علم و ادب هنګامه بیاتوده کړه. لوی احمدشاه باباافغاني شاهانودود وپاله او نه یوازې ئې دعلماوو او شاعرانودرناوی وکړ، نه یوازې ئې د هغوی له پاره مادي ومعنوي امکانات برابرکړل، بلکي پخپله ئې هم قلم را واخیست او د دغه لوی فرهنګي بهیر په سرکي ودرېدئ، قلم ئې وچلاوه، شعرئې ووایه او په شعوري توګه ئې خپل رسالت اداکړ.

دنورو فرهنګي هڅوترڅنګ ئې لکه پاس چې مو وویل، په ۱۱۶۸ هـق کال د"بیت الاشراف" په نامه یو ملي موزیم جوړکړ، چې په هغه کې ئې دخطي آثاروبرخه هم په پام لرله. لوستونکو ته دي معلومه وي چې لوی احمدشاه بابا د بیت الاشراف تر تاسیس وروسته په ۱۱۷۰هـق کال خطاطان وګمارل چې ډول ډول کتابونه استنساخ کاندي. علامه رشاد د میرزا محمدهاشم بهشتي خراساني د تالیف " نګارستان سلطاني" دهغې برخې په حواله چې د ۱۱۷۰ هـق کال پېښې پکښې بیان سوې دي لیکي چې د" عبدالقادر بیدل دېوان ئې هم په دغه کال ومونډی". د نګارستان سلطاني مؤلف دلوی احمدشاه بابا او د هغه د زوی تیمور شاه د دربارونو منشي وو. عزیزالدین وکیلي فوفلزایي د "تیمورشاه دراني" د لومړي ټوک په ۷۷ مخ (چاپ دوم) کي دغه کتاب " نسخه منحصر بفرد" بللې ده او زیاتوي چې په هغه کې " ... و اثر او حاوی شرح حال وآثار و نوادر و نکات و قطعات نظم و نثر تاریخ است". په دغه وخت کي یو بل کتاب هم لیکل سوی دئ چې "نګارستان عجائب و غرائب" نومېږي. د دغه کتاب مولف" پشاوری" نومېږي او وایي چې د افشار نادر له معاصرینو څخه وو. نګارستان عجائب و غرائب د محیط طباطبائی په مقدمه په ۱۳۴۱ ش کال په تهران ـ ایران کي چاپ سوی دئ.

علامه رشاد مرحوم وایي: په ۱۱۷۳ هـق کي چې بابا ډهلي ته ورسېد، هورې ئې بیا" خطاطان، میناتورلیکونکي تذهیب کاران وګمارل چې د نظامي، امیرخسرو دهلوي، شهزاده داراشکوه، مولانای بلخي مثنوي ولیکي. میرزا عبدالهادي او میرزا الله ویردي ئې وګمارل چې د نورالعین واقف لاهوري دېوان ولیکي". (وګ: داحمدشاهي عصر نومیالي ـ ۱ / ۸۶ مخ ـ چاپ ۱۳۹۴ش) دغه آثار په احمدشاهي کتابتون کي چې د بیت الاشراف یوه برخه وه، خوندي سوي ول. په دغه کتابتون کي پر نوروآثارو سربېره یو خطي قرآن شریف وو چې په کوفي خط لیکل سوی او ویل کېده چې د حضرت امام حسین رضی الله عنه په خط وو. دا قرآن عظیم د لوی احمد شاه زوی شهزاده تیمور ته هغه وخت په لاس ورغلی، چې نوموړی د پلار له خوا په هرات کي د والي په توګه ټاکل سوی وو. شهزاده تیمور دغه نفیسه نسخه د۱۱۷۵ هـق کال د لومړي خور پر ۲۱مه له درویش علي خان هزاره څخه په پنځوس تومنه رانیولې او د خپل پلار کتابتون ته ئې را لېږلې وه.(وګ: داحمدعصر نومیالي ـ ۸۶مخ)

په دغه کتابتون کي د خوشحال خان خټک د کلياتو يوه نسخه هم پرته وه، چي د شيخ محمد اعظم په لاس د محمدعلي خان له پاره په ۱۱۴۱هـق کي استنساخ سوې وه. دا نسخه لوی احمدشاه بابا ته هغه وخت وړاندي سوې وه چي په "ارض اقدس (مشهد)" کي وو. په هغه وخت (۱۱۶۸هـق) کي ئې امر کړی وو، چي د خوشحال خان خټک دغه کليات دي د کندهار کتابتون ته ولېږدول سي.

دغه تاريخي او علمي خزانې زموږ د نورو وياړونو په شان دغفلت او بې پروايیوله امله له منځه تللي دي خو يوه نخښه ئې لا تر اوسه هم د لوی احمدشاه بابا په مقبره کي پرته ده او هغه دقرآن عظيم يو ښکلې او نفيسه نسخه ده.

علامه رشادمرحوم په يوه يادابت کي کښلي دي چي دغه خطي قرآن عظيم په ۱۱۷۸ هـق کال چي د لوی احمدشاه بابا دپاچهی اتلسم کال کېږي، د نواب مصلح الدوله نورالدين خان بهادر دراني باميزي په فرمايش په کشمير کي خطاطي سوی دئ. د خطاطۍ کار ئې د ۱۱۷۸ هـق د رجب په مياشت کي پيل سوی او د ۱۱۷۹ هـق کال د ربيع الثاني پر لسمه پای ته رسېدلی دئ. پر حاشيو باندي ئې په دريو چوکاټو کي تفسيرحسيني، تفسير حقايق التنزيل او تفسير خواجه معين الدين نقشبندي ورسره مل کړی دئ.

تفسير حسيني د مولانا کمال الدين حسين بن علي کاشفي واعظ هروي (ـ) تاليف دئ. ددې تفسير ژبه فارسي ده او بل نوم ئې "مواهب عِليّه"دئ. تفسير حسيني څو واره په هندوستان کي چاپ سوی دئ. ډېر پخواني چاپ ئې چي زما په ستر گه سوی دئ، هغه د ۱۲۴۳ هـق = ۱۸۲۷ع د کلکتې چاپ دئ.

د تفسير حقايق التنزيل په باب زه دونه قدر ويلای سم چي د تفسير نسفي بشپړ نوم "مدارک التنزيل و حقايق التاويل" دئ خو په تفسير نسفي سره زيات شهرت لري. دا تفسير ابوحفص نجم الدين عمر نسفي (متوفی ۵۳۷هـق) په عربي ژبه ليکلی دئ. دمحمود بن عمر زمخشری خوارزمي تفسير بيا "الکشاف عن حقائق التنزيل و عيون الاقاويل" نوميږي. دا څېړنه زه هغه وخت بشپړولای سم چي ژوند او حوادث دونده (دومره) فرصت راکړي چي د لوی احمدشاه بابا د مقبري پر دغه خطي قرآن شريف باندي له نزدې څخه تحقيق وکړم.

د خواجه معين الدين نقشبندي تفسير په "تفسير معيني" سره هم يادېږي. مولانا معين الدين بن خواجه محمود نقشبندي د شيخ عبدالحق محدث دهلوي (وفات ۱۰۵۲ هـق) له شاگردانو څخه دئ. مولانا معين الدين په عربي او فارسي ژبو تفسيرونه کښلي دي چي فارسي تفسير ئې "شرح القرآن معينی" او عربي تفسير ئې "زبدة التفاسير" نوميږي. (وگ: زندگانی شاه ولی الله محدث دهلوی ـ ص ۴۱ چاپ ۱۳۸۳ش)

دلوی احمدشاه بابا د مقبرې د دغي نفيسي او نادري نسخې د استنساخ کار د علي اکبر خان ورکزي تر اهتمام لاندي سرته رسېدلی دئ. علي اکبر خان د نواب نورالدين خان مصلح الدوله له ملگرو څخه وو.

نورالدين خان مصلح الدوله تر حاجي کريمدادخان باميزي دمخه د لوی احمدشاه بابا له خوا

دکشمیر ناظم ټاکل سوی او تر ۱۱۸۶ هـ ق پوري پر همدغه دنده پاته وو. په تاریخ احمدشاهي (۴۳۳ مخ ـ دوهم چاپ ـ دانش خبرندویه ټولنه) کي ئې نورالدین خان بامیزی د اشرف الوزراء شاولي خان بامیزي د اکا



زوی "بني عم" بللی دئ.

دا نسخه ما(هوتک) له نزدو څخه نه ده کتلې خو د هند لوی محقق او عالم علامه سیدسلیمان ندوی (۱۸۸۴ ـ ۱۹۵۳ع) چي په ۱۹۳۳ع کال له علامه اقبال لاهوري سره یوځای د اعلیحضرت محمد نادرخان په بلنه افغانستان ته رسمي سفر کړی وو، دهغه په ترځ کي ئې په کندهار کي د لوی احمدشاه بابا د زیارت دغه نفیسه نسخه کتلې وه. ده پخپله سفر نامه کي چي په اردو ژبه ئې کښلې ده، ددغي خطي نسخې د پای عبارت داسي رانقل کړی دئ: "... سلطان احمدشاه بادشاه غازی درانی خلدالله ملکه دهم شهر ربیع الثانی ۱۱۷۹ هـ باهتمام بنده درگاه اضعف عبادالله علی اکبر خان اولوکری (اورکزی ـ م. هـ)، حافظ عبدالوهاب متن نوشت و محمدهاشم و محمدتقی و عبدالقدیر تفاسیر نوشت و محمد یوسف ترجمه نوشت و به کار صحافی عبدالحکیم صحاف صورت اتمام پذیرفت".

په دې ډول نو ددغي نسخې د خطاطي کار څو تنو خطاطانو سرته رسولی دئ. عبدالوهاب خطاط ئې متن او محمد هاشم و محمد تقی و عبدالصبور نومو خطاطانو ئې تفسیرونه او محمدیوسف خطاط ئې ترجمه کښلې ده. دا خطاطان ټول د کشمیر ول.

د سیدسلیمان ندوي دغه سفر نامه واردواره د ۱۹۳۴ع کال په جولای کي په دائرة المعارف یا (معارف اعظم گډه) ـ نمبر ۲ جلد ۳۴ ص ۸۸ کي خپره سوه او وروسته په مستقله توگه هم څو کاله وروسته له حیدرآباد دکن څخه خپره سوې ده (می ـ ۱۹۴۵ع).

د دغي خطي نسخې عکسونه ما(هوتک) د گران سیدعبدالستار مهتابي په مرسته برابر کړل او دا دئ یوه دوه مخه ئې له دې لیکني سره تبرکاً یو ځای کوم.

نور بیا...

ډاکټر نثار احمد صمد واصفي

# هنرمند واکمن

بسم الله الرحمن الرحیم ـ درنو دوستانو، غواړم د خپل یو کتاب (د پند او عبرت قصې ـ دریم جلد) څخه چې تر چاپ لاندي دئ، یوه له سوزه ډکه قصه درته وړاندي کړم.

هندوستان د پښتنو ډیر لوی تاټوبی تېر سوی دئ. په زرګونو آن لکونو پښتنو په هند کي ژوند، خدمت او محبت کړی دئ او څو پېړۍ ئې هلته واک چلولی دئ. له دې جملې څخه یو هم بایزید دئ، چې د باز بهادر په لقب سره د (مالوه) محلي پاچا وو.

د هندوستان د (مالوه) سیمه په شوارلسمه میلادي پیړۍ کي د افغانستان د غور د واکمنو یو مهم مرکز وو.

شېر شاه سوري چې په ۱۵۴۰ میلادي کي د هندوستان پاچا سو نو یو پښتون مشر (شجاعت خان) ئې د مالوه حاکم وټاکی. شجاعت خان په ۱۵۵۴ کي مړ سو. مالوه د ده پر درو زامنو (دولت خان، بایزید خان او مصطفی خان) ووېشل سوه.

بایزید خان پر خپل ورور دولت خان چې په (ماندو) کي اوسیدی، حمله وکړه او هغه ئې ووژی. ده د باز بهادر خان په لقب سره په (سارنګ پور) کي خپله محلي پاچاهي اعلان کړه.

ده پر خپلو ګاونډو محلي پاچهیو څو څو واره حملې وکړې. وروسته ئې د جنګونو څخه لاس واخیست او موسیقۍ ته ئې مخه کړه. باز بهادر په موسیقۍ او شاعرۍ کي خاص استعداد او لوی لاس درلود. باز بهادر د آس د سپرلۍ ماهر او د توري مېړنی هم وو. ده د هندي موسیقۍ راګونه زده کړي وو او د ښکلو ودانیو په جوړولو کي ئې هم سارۍ نه درلود.

وایي چې یوه ورځ ئې د ښکار پر وخت په بڼ او شنو کروندو کي یوه هندو راجپوت پېغله ولیده، چې د خپلو ملګرو سره ئې سندري ویلې. کله چې باز بهادر هغه ځوانه نجلۍ چې (روپ متي) نومېده، ولیده نو د هغې پر ښکلا او خواږه آواز باندي مین سو. د روپ متي فارسي شاعري هم ښه زده وه او پخپله به ئې موسیقي جوړوله.

باز بهادر هغې ته مرکه وکړه او ورته وې ویل چې دا به خپله ملکه کړي او هر ناز به ئې مني. هغې دا شرط پر کښېښود چې زه خو هره ورځ د (نربدا) د سیند ننداره کوم او که ته زما سره واده کوې نو باید داسي محل راته

جوړ کړې چې له هغه ځايه هره ورځ د نربدا او بو ته ګورم.

واکمن بازبهادر د هغې شرط ومانه او هغې هم واده ورسره وکړ. دا واده په اسلامي او هندويي دواړو طريقو سره وسو. روپ متي وروسته (راني روپ متي) سوه يعنی ملِکه روپ متي. پاچا ډېر ژر د روپ متي له پاره د نربدا سيند ته مخامخ يو ډېر عالي او پرتمين محل جوړ کړ، چې (جهاز محل) ئي وباله. روپ متي به هره ورځ د دې مانۍ له پاسه د غټ برج څخه د نربدا د سيند ننداره کوله.

پاچا به ډېره نازوله او دواړه به د موسيقۍ په تال او سور کې يو د بل په ديدن نه مړېدل. دواړو ډېر خوشحاله، آرام او بېغمه ژوند درلود.

د (ريوا کنډ) مانۍ يا (جهاز محل) چې په پاخه ډول جوړ سوی دئ، پراخ دالانونه، کړکۍ او د ښکلي نقاشۍ ستني لري. جهاز محل اوس هم د بهرنيو او کورنيو سيلانيانو د خوښې وړ ځای دئ، چې د هندوستان په زړه يعنی مديا پرديش ايالت کې واقع دئ.

په هر صورت! د هغوی د دې خوږ ژوند او په تېره بيا د روپ متي د ښايست خبر د مغل پاچا جلال الدين اکبر سپهه سالار آدم خان ته ورسېد او هغه وغوښته چې روپ متي تر لاسه کړي.

په ۱۵۶۱ ميلادي کال کې د هند مغولي واکمن جلال الدين محمد اکبر خپل دوه نامتو جنرالان ادم خان او پير محمد خان شيرواني د مالوه د سيمي د نيولو له پاره وليږل. د مغولو ډېر لوی او مجهز پوځ د بازبهادر د کمزوره او کوچني پوځ سره مخامخ سو. په هغه جګړه کې چې د (سارنګ پور) په سيمه کې وسوه بازبهادر مات سو او مالوه د مغولو لاس ته ورغله. بازبهادر خاندېش ته وتښتېدی، خو روپ متي د خپلو څو ښځينه ملګرو سره د نربدا سيند په منځ کې يو ټاپو ته ولاړه او هلته ئې د خپل مېړه (بازبهادر) انتظار کاوه. مګر دا تر اوسه معلومه نه ده، چې هغې ولي د خپل مېړه سره ملګرتوب ونکړ يا مېړه يې ولي هغه نه ورسره بوتله او دواړه ولي پر جلا ـ جلا لارو ولاړل، حال دا چې د يو بل له پاره ئې ځان هم قربان کاوه. خو آيين اکبري ليکي چې «روپ متي او د هغې ښځينه ملګرو د مانۍ له برنډې څخه د دې جنګ ننداره کول.» نو ښايي د دواړو د بېلتون اصلي علت همدا اړودوړ او جنګي طوفان وي.

په هر صورت! بازبهادر د پوځي کومک له پاره ها خوا دې خوا سرګردانه ګرځېدئ، خو موفق نه سو او باالاخره په (چتورګړ) کې واوسېدی، چې د مغولي سلطنت څخه آزاده سيمه وه. روپ متي به ټوله ورځ او شپه په خپل مېړه پسې ژړل او د غم ساندي بې ويلې.

پروفيسور عبدالحليم ليکي: د بازبهادر پوځيانو امر اخيستی وو، چې د ماتي او تيښتي پر مهال د شاهي حرم ښځي ووژني تر څو د مغولي پوځيانو د هوس ښکار نسي. همداسي هم وسول او دا ښځي تر بريد او ګوزار لاندي راغلې. زخمي ښځو دې خوا ها خوا ځغستل چې دا مهال مغولي پوځيان شاهي مانۍ ته راورسېدل. ادم خان ته خبر راغی چې روپ متي مړه نه بلکي ژوندۍ خو زخمي ده. ده هم ژر هغې ته احوال ورکړ، چې د تداوي څخه وروسته به تا خپل مېړه ته ولېږم. په دې خبر سره روپ متي د ګل په شان وغوړېده او دا بيت ئې وواېه:

په دې زیري سره زما د ژوند قربانول د منلو سو

ځکه چي دا زما د آرامۍ سبب سو

هغې روحي سبک واخیست او ژر جوړه سوه، خو ادم خان په زړه کي بد نیت درلود او هغې ته ئې خبر ورکړ، چي تا به هغه وخت خوشي کړم که باز بهادر ځان امپراطور ته تسلیم کړي.

یوه شپه ده خپل استاځی روپ متي ته ولیږی تر څو هغه د ده سرای ته راولي، خو هغې ورته وویل چي ادم خان باید پخپله راسي چي زه ورسره ولاړه سم.

کله چي لږ ګړی وروسته ادم خان د هغې بستر ته راغی نو وې لیده چي روپ متي ښه سینګار کړی دئ، ډېر خوشبویه عطر ئې وهلي دي، ډول – ډول ګېڼې ئې پسوللي دي، د تازه ګلانو ګجرا (په سر کي د تازه ګلانو ټومبل) ئې ایښی دئ او پر بستر پرته ده. ادم خان چي د هوس په توګه لاس ور وړ نو وې لیده چي هغه مړه سوې ده او تش کالبوت دئ. افسوس! افسوس!. دئ له قهره سور او شین سو او د پیره دارانو څخه ئې وپوښتل، چي دا ولي؟ هغوی ورته وویل چي کله ستا هیئت بیرته تا ته درغی نو هغې د باز بهادر په غم کي لوی ساندي او کریږي وهلې، څو چي هغه ته د وفادارۍ ثابتولو او خپل عزت ساتلو په خاطر ئې زهر وخوړل.

آدم خان هم روپ متي ته د احترام په خاطر د هغې مړی په ډېرو شاندارو مراسمو سره خاورو ته وسپاری. خو اکبر پاچا له دې پیښې تر خبریدو وروسته ببله ځنده ادم خان طرد کړ او پیر محمد خان ئې د ده پر ځای عمومي قوماندان کړ.

باز بهادر دا مهال په (اودې پور) کي د رانا اودي سینګ سره اوسېدی او تل به ئې د روپ متي په یاد د غم سندري ویلې.

کله چي اکبر پاچا د باز بهادر د میني له قصې خبر سو، نو د خپل واک پر پنځلسم کال ئې (اودې پور) ته د حسن خان خزانچي په مشرۍ یو هیئت ولېږی تر څو دی خپل دربار ته راولی. نو هغه و چي باز بهادر ئې د خپل یو درباري په حیث ومانه. اکبر پاچا لومړی هغه ته د یو زر پوځیانو مشري ورکړه، وروسته ئې د دوو زرو پوځیانو مشر کړ، خو د باز زړه د روپ متي سره و چي د خپل پت او عزت د ساتني له پاره ئې مرګ غوره کړی وو.

باز بهادر د اکبر پاچا په دربار کي د موسیقۍ په محفلونو کي خپل ځانګړی سبک درلود چي مغلو (بازخاني) نوم ورکړ. باز بهادر د (دوهه) یا د دوه بېت او د خیال په زمزمه کي تر نورو ټولو سندرغاړو لوړ مقام ګټلی وو. د هندي راګونو هغه نومونه چي (میا) پکښي راځي، لکه: میا کي ملهار یا میا کي ټوډي، دا د باز بهادر له خوا جوړ سوي وه، چي اوس ئې هم د کلاسیکي موسیقۍ سندرغاړي زده کوي.

کله چي د باز بهادر د ژوند وروستۍ شېبې راورسېدې نو وصیت ئې وکړ چي باید په (سارنګ پور) کي د نربدا سیند په هغه جزیره کي ښخ سم چي روپ متي څو کاله د ده په انتظار پکښي تیر کړي وه. همداسي هم وسول او اوس د دې دوو ناکامو مینانو قبرونه هلته دي.

د باز بهادر او روپ متي د میني داستان په منظوم ډول په هندي، اردو او پارسي ژبو هم لیکل سوی دئ. د

تاريخ مرصع ليکوال افضل خان خټک هم په خپل کتاب کي د دې قصې يادونه کړې ده او ليکلي ئې دي، چې د مالوه پښتون سلطان باز بهادر تل د خپلي ملکې په عشق کي ډوب وو او د سلطنت چارو ته ئې پاملرنه نه کوله.

د باز بهادر او روپ متي د محبت داستان لومړی ځل د اکبر پاچا يو قوماندان (احمد العمري ترکمن) په ۱۵۹۹ کي وليکی، چي بيا څلور پېړۍ وروسته انگريزانو په ۱۹۲۶ کی هغه په انگريزي ژباړلی او خپور کړی دئ، چي (روپ متي، د نيلوفر گل مېرمن، د ماندو ملکه د وفادارۍ يو بې سارې داستان) نومېږي. ويل کيږي چي په دې کتاب کي د روپ متي شپاړس شعرونه هم موجود دي.

دا لا څه د هند سينما (باليووډ) هم په ۱۹۵۷ کي د باز بهادر او روپ متي د مينې له داستان څخه يو فلم جوړ کړی دئ چي (راني روپ متي) نومېږي. د فلم پروډيوسر د دواړو په اصلي قصه کي يو څه تصرف او لاس وهنه کړې ده. د دې کامياب او مشهور فلم هيرو (بهارت بهوشن) او هيرويين (نيروپا رای) ده.

د ماندو د سيمي مېرمني اوس هم په ودونو، ښاديو او د کور په کارونو کي د روپ متي شعرونه زمزمه کوي.

هو! هندوستانيانو پښتنو ته چي هلته ورغلي او اوسېدلي وه خپل زړونه ورکړي دي او خپلي غيرتي او ښايسته پيغلی ئې ورکړي دي لکه: کريشن پياري، لاج ونتي، روپ متي، گنگا او نوري، چي هغوی ټولي زموږ وريندارگاني دي. هغوی پرموږ حق لري چي حق ئې ادا کړو، يادونه ئې وکړو او په قربانيو او خواريو ئې وياړو، ځکه چي هغوی زموږ په تاريخ پوري هم اړه لري، نو هغوی چي مسلمانانې سوي دي الله تعالی دي ئې د خپلو محبوبو مېړونو سره وبخښي. والسلام

---

ماخذونه:

۱ - روپ متي او باز بهادر: د صفيه حليم څېړنيزه ليکنه؛ صفيه حليم ډاټ کام؛ ۱۷ ډسمبر، ۲۰۱۳.

۲ - باز بهادر: د ډاکې د پوهنتون د تاريخ د ډيپارټمنټ د مشر پروفيسور ډاکټر عبدالحليم آنلاين څېړنه؛ د شيراز حيدر ويبلاگ.

۳- روپ متي؛ ويکی پيډيا ويب پاڼه.

۴- باز بهادر؛ ويکي پيډيا ويب پاڼه.

۵- اکبر نامه (آيين اکبري)؛ ويکي پيډيا ويب پاڼه.

واحد فقیري/واشنګټن

# د مجروح ځانځاني ښامار ته یو سیاسي نظر

(پنځمه او وروستۍ برخه)

لاروی ستر ټولواک ته داسي جواب ورکړي:
اې د کل جهان باداره فرمانداره!
ستا معبد خو نوی – نوی نو بنا دئ
نه ئې کلک نه ئې پاخه دي دیوالونه
نه ژور مستحکمه تهدابونه
د دې سیمي رښتینی اصلي واکداره
رب النوعه د بهار وه، الهه د عشق او میني
په دې ځای کي میشته خلګو
د هغې ښکلي دلداري پرستش کړو
چمنونه شنه دښتونه ئې معبد وو
د زړه مینه د هغې د عبادت ځای
زه چي تلمه لدې ځایه
هغه ښکلې نیمه خدایه په بستر د شنیلو لاګرځېدله
غرځنو ئې شنه لمنه بویوله ښکلوله
اوس چي بیرته راستون شوی
هري خوا ته ریګستان دئ، وچي – وچي صحراګاني
بیابانونه داغزو ډک ترې را تېر شوم
نه چمن وو نه باغونه نه ځنګلونه
چي راورسېدلم دلته
نو لیدل مي:
چي د زړه خونه وېرانه رنګه – رنګه کنډواله ده
هم د ننه پکي ناست یو تور ښامار دئ
خلګ وینم چي روان دي په بې لارو شړو لارو
پرستش د اژدها کړي
اې د کل جهان واکداره!
زه اوس دا لوی حقیقت بیانومه هر – هر چا ته.
(۱۷۲-۱۷۳)

لاروی دیکتاتور ته وایي چي تا تاریخ تحریف کړی دئ، ستا لاره او دین نوی او بې بنیاده دئ، د دې ملک اصلي واکداره د (عشق او میني) الهه وه. دلته خوشحالي وه، آزادي وه، مګر له هغه وخت راهیسي چي تا قدرت غضب کړی دئ او ستا نامشروع حکومت روان دئ دلته هر څه په ریګستان بدل سوي دي، هر څه وچ او تباه دي. لاروی وایي چي کله زه بېرته خپل

وطن ته راستون سوم ما ولیدل چې د زړونو خونه ورانه او ړنګه سوې ده، خلګ ګمراه سوي دي، د اژدها پرستش کوي، د یو نامشروع دیکتاتور حاکمیت ئې منلی دئ، خو اوس چې زه راغلی یم زه هر چا ته حقیقت وایم، زه افشاګري کوم، زه ستا تخت او بخت درخرابوم.

د غضب اور ئې لمبه شو په څېره کي
یوه شېبه نیمه په چرت شو
بیائې وکړه یو خندا د زهرو ډکه
ځان سره ووې:
پروا مه کړه!
دا سړی خو لیونی دئ بې قدرته ناتوانه
بیائې مخ کړو لاروي ته د دوهم کرت د پاره
په پسته ظاهري ژبه ئې تپوس کړو:
اې پردېسه مسافره!
راته وایه!
د دې ښار ښکلو نجونو کي تا څنګه غوره کړې
دا خیر نه دا سوالګره بې کماله بې جماله؟
او زما وفادار خلګ زحمت کښه رعایا بیا
رابلې ته چې سرونه په سجده ورته نسکور کړي؟

د استبداد د سقوط یوه علامه دا ده چې ستر ټولواک غفلت کوي او لاروی یو ناتوانه او بې قدرته کس انګېري، دغه راز غواړي چې د آزادۍ رب النوعه تحقیر کړي، سوالګره، بې کماله او بې جماله ئې یادوي. بلخوا ستر ټولواک غواړي چې لاروي ته دښایسته ښځو د وړاندي کولو غیر مستقیمه بلنه هم ورکړي، غواړي چې لاروی فاسد او کورپټ کړي. د لاروي څخه سوال کوي چې ته ولي زما رعایا (مملکت خدا داد) زما پر خلاف راپاروې او د ازادۍ د الهې حاکمیت ته ئې رابولې؟

لاروي ورته جواب کړو:
اې د کل جهان باداره فرمانداره!
خبر نه ئې؟
د ښامار زور قدرت خو فقط پروت دئ
په هغه بېره او ډار او واهمه کي
چې دا خلګ پرې اخته دي.
که دا بېره شي زایله
دغه ډار او واهمه له مینځه لاړ شي
نو ښامار یو دم سقوط کړي نابود کېږي
ښه پوهېږې:
د ښامار د قدرت رمز او د ښامار د مرګ طلسم فقط دا دئ
او همدا شان
د بهار د رب النوعي زور قدرت خو
فقط پروت دئ، د ژوندو زړونو په شور کي
سر مستي چې شي محدوده
آزادي چې شي تبعیده.
ښاپېرۍ د عشق سقوط کړي
ځانګ ورزي ئې ماتېږي
دا لیلی دا شین کمیس ناشنا پېغله
چې هیڅوک ترې خبر نه دئ د هیچا پرې نظر نشته
دا یو وخت کي الهه د نو بهار وه
دا خو هغه زمانه وه
چې مستان آزادګان ټول
د دې سیمې واکداران وو
بیا چې کله واهمې او بېرې ډار زوړ نه تسخیر کړل
بینایي له ستر ګو لاړه

خلگ واړه شول محرومه
له دې هسې همېش ځواني هم لرغوني رب النوعي
له دیداره
خلگو واړول مخونه له هغې نه
د ښامار په پرستش ئې کړل لاس پوري
نو هغه بیا بهر ووته له ښاره
هلته کښېناسته په خاورو
د هغې لاري په خوا کې
د خپل ورک مسافر لاره ئې څارله
دا خو هغه مسافر وو، زوړ اشنا د زمانو اوږدو قرنو نو
چي ترې ورک وو
ورک د ورک سمندر غاړو پوري تللی
اوس راغلی راستون شوی.

(۱۷۴-۱۷۶)

دلته لاروی ښېرته خپل پخوانی استدلال بیا تکراروي او فرماندار ته وایي، چي ستا حکومت پر ډار، ترور او اختناق باندي ولاړ دئ. ستا د استبدادي نظام اساساً د خلگو پر ډارولو باندي بنا دئ، خو هر کله چي دا ښېره او وهم د خلگو له زړونو څخه ووځي، بیا نو ستا تخت او بخت ورانېږي، ستا ظلم او استبداد ختمېږي.

لاروي وایي چي ازادي محدوده سي، بس هلـه د عشق او میني الهه سقوط کوي. مانا د عشق رب النوعه هله غوړېږي او حاکمـه وي چي پـه جامعـه کي ازادي او حریت وي، داسي قـواووي حـاکمي وي، چي لـه ازادۍ څخه د دفاع کولو جرات او طاقت ولري.

لاروی د ښار دیکتاتور ته وایي چي د ازادۍ د رب النوعي زور او کشش د خلگو په زړونو کي پروت دئ. د دې د حاکمیت په دوران کي، آزادګان او مستان د سیمي واقعي واکداران ول. هله عشق وو، دوستي وه او برابري او مساوات وه، مگر کله چي خلگو د ازادۍ حمایت خوشي کړ او ستا استبداد حاکم سو دا هم له ښاره ووتله او د لاري پر سر ناسته وه او د یو انقلابي ناجي په تمه ئې انتظار کاوه او اوس زه د انقلاب استازی بیا راستون سوم.

خو افسوس چي:
دلته سترگي ډېري سترگي نابینا دي
رڼاگاني د رشتیا د حقیقت لیدلای نه شي
ډېر غوږونه ټپ کاڼه دي
ترانې د ژوندانه اوریدی نه شي
که نه یو نظر پکار دی د لیلی څېري بشر ته
د ژوندون د سپین سبا رڼا ځلېږي
خو افسوس چي بینایي په چا کي نشته
خبر نه دي لیلی څوک ده
بیره ډار او واهمې خو
د دې خلگو په غوږونو زړونو سترگو نااشنا مهر لگولی
اورېدی نه شي آواز د حقیقت نور
او د دې سیمې ټول خلگ
چي تل ویني ستا څېره کي
سرې لمبې د غضب قهر
لیدلای نه شي رڼاگاني د رشتیا د حقیقت هیڅ
اې واکداره! زمامداره!
ستا سقوط ستا انحطاط خو زه ښه وینم
ستا په ښېره ستا په ډار کي.

(۱۷۶-۱۷۷)

لاروی د خلگو د سیاسي وضعیت جاج اخلي او وایي چي ښاریان ړانده او کاڼه دي. د زړونو چینه ئې وچه سوې ده. پر زړونو ئې مهرونه لگېدلي دي. ستا حاکم اختناق هغوی دونه ډارولي دي، چي حقیقت

ليدلای نه سي، د حق پلوي کولای نه سي، مګر اوس زه ستا سقوط او انحطاط په سترګو ګورم، ځکه ته د خلګو له زوره ډارېږې، انقلاب را روان دئ، دا انقلابي جريان به نور هم قوت واخلي او ستا سلطنت به رنګ کړي:

ښه خبر شه!
هغه شور ما شور چي اورې ته په شپو – شپو
دا به نور لا پسي زيات سي.
سر مستان آزادګان ټول شورشيان به
زولنې کړي خپلي ماتي
له بندونو زندانونو نه به را ووځي
قلاګاني حصارونه به په اور لمبه – لمبه کړي
رڼاګاني به پيدا شي
رندې سترګي به بينا شي.

(۱۷۷)

دلته لاروی امير غضب ته اخطار ور کوي چي ستا دور ختم دئ، ستا د حاکميت اخر شېبې رارسېدلي دي. ځکه ډېر ژر به جيل خانې ماتي سي، سياسي قيديان به ازاد سي، ستا حصارونه او کلاګاني به ماتي کړي، د خلګو سترګي به بينا سي او عمومي انقلاب او قيام به وکړي. د لاروي خبرو ته د ديکتاتور حوصله ختمېږي او د آزادۍ له رب النوعي سره سوال او جواب شروع کوي او غواړي چي د هغې له حال او احواله ځان خبر کړي.

ستر واکدار چي دا خبري واورېدلې
ډېر په قهر په غضب شو
هم د زړه په ژور تل کي
له مجنونه بېره ډار ورته پيدا شو
مخ ئې واړاوه په قهر په غضب بيا
نااشنا پېغلي ته ئې غږ کړو، ورته ووې:
اوس ته وايه چي ته څوک ئې؟
شاليلی ځيري ګريوانه
کبرجنه بې پروا هلته ولاړه
په مکيز مکيز مسکی شوه
کوم يو دوري – دوري ځای ته ئې کتله
خوږ آواز ئې
د مانۍ په دهليزونو تالارونو
د مانۍ لاندي دننه تاخانو کي
انګازې نااشنا کولې
داسي ووې:
زه خو زه يم! زه ليلی يم!
زه د ميني رب النوعه، الهه د نو بهار يم
زما ملک خو هغه ځای دی
چي سر مسته شورشيان ئې واکداران دي
د آزاد و مينانو زړه زما د قدم ځای دی
...
زه به ځم بيا به کښېنمه بهر هلته
بيا به لاره زه څارمه
چي بهار يو ځل بيا راشي
راستانه شي سر مستان ټول
مينان د آزادۍ انقلابونو

(۱۷۹-۱۷۷)

د ازادۍ او عشق الهه ستر ټولواک ته وايي چي زه د آزادګانو او مېړونو په وطن کي حاکميت کوم، ذليل او زبون ولسونه ما نه سي ساتلای، ځکه زما ساتل قرباني غواړي، اما اوس زه ځم څو د آزادۍ مينان او انقلابيون پيدا کړم، بيا به د استبداد مانۍ رنګه کړم، خو حقيقت دا دئ، چي انقلاب او ازادي راتلونکې ده او ستا د

استبداد دوران ختم دئ. کله چې د آزادۍ الهه او لاروی ستر دیکتاتور په ولسي قیام باندي تهدیدوي، ستر ټولواک ډار پېږي او د توقیف امر ئې نه ورکوي، ځان پخپله غولوي او وایي:

دا خو دواړه لیوني دي
زه ببر پېږم
چې د دوی له لیونتوبه کوم خطر را ولاړ نه شي
کوم ساري لیونتوب نه وي او په نورو پوري نه شي
د ښار خلک ټول اخته په جنونه نه کړي
بیا فوري لاروی او لیلی دواړه
وشړل له خپل دربار له حضوره
...
لاروي د نیمو شپو خو
د هغې سیمي د خلګو په ذهنو کي
لوی مقام و پیدا کړی
د غیبي قدرت خاوند ورښکار ېدلو
فرماندار و بېریده چي
دغه شخص که زنداني کړي یا ئې وشړي له ښاره
کوم شورش کوم بغاوت را پیدا نه شي
نو ئې ځکه لاروی نه زنداني کړو نه ئې وشاړه له ښاره
چاره بله پاتي نه وه
دا خو ځکه چي بېشماره زندانونو تاخانې وې زمکي لاندي
واړه واړه وو ډک شوي
په یاغیانو شورشیانو لیونیو
د لیلی او مجبون دپاره ځای پکي هیڅ نه وو.
(۱۸۰-۱۸۱)

که څه هم د ښار دیکتاتور د اوضاع په وخامت باندي پوهېږي، خو د لاروي او د آزادۍ د رب النوعي پر ضد کوم اقدام نه کوي او داسي ښکاري چي نور ئې عقل او بصیرت له مینځه تللی دئ او فکري نظام ئې فلج سوی دئ، بلخوا، دیکتاتور ډارېږي چي د لاروي په بندي کولو سره ښایي په ښار کي عمومي بغاوت رامنځته سي. دوهم دا چي امیر غضب دونه خلګ بندیان کړي دي چي نور په محبسونو کي ځای نسته او بېشماره سیاسي مخالفان، منورین، لیکوالان او هنرمندان پکښې قیدي ول.

ابدي څرخ:

پدې وروستي فصل کي، مجروح یو کرت بیا د خپل سیاسي فلسفې مهم ټکي او د تاریخ د فلسفې جریان راته بیانوي. دلته مجروح د استبداد او دیکتاتوري اختتام ښیي او دا راته وایي هیڅ شی ابدي نه دئ، استبداد هم یوه ورځ حتما ختمېږي، وخت ئې پوره کېږي او د زمان وینه ئې بالاخره بدنه خوري، پدې فصل کي، دیکتاتور نور د عدم په لور روان دئ. د ماڼۍ دیوالونه ئې درزونه کوي، په ښار او زندانونو کي د شورشیانو اعتراضات او مظاهرې ډېرېږي او د خلګو عمومي مخالفت ورځ په ورځ زور اخلي.

استاد مجروح د خپل اثر په نتیجه کي داسي فکر کوي، چي د ازادۍ او دیکتاتورۍ تر منځ شخړه به ابدي وي، دا مبارزه به دایماً د انسان او جامعې په ژور بطن کي روانه وي، که انسانان هوښیار، مسئول، او په سیاسي چارو کي دخیل وي، هله به ازادي، امن او خوشحالي وي، خو کله چي بنیادمان د ځانځاني ښامار ښکار سي، خود پرستي زیاته سي، غفلت وکړي او له تاریخه بې خبره سي، هله به دیکتاتوري حاکمه وي.

مجنون پاتي حال ویجاړی هلته ناست وو
د خپل ښار په کنډواله کي

د عالم په تماشه وو
د زمان دفتر برسېره ورته پروت وو
له اغازه تر انجامه
له ذرې تر کهکشانه
هم ماضي او مستقبل غاړه غاړې وو
...
تر څو شپه یوه د شپو وه
لاروی په کنج کې ناست وو
د افق توري لمنې ته ئې کتله
یو ناڅاپه وربښکاره شوې، هلته دورې،
رڼاګاني زیاتي – زیاتي، په تورتم کې ځلېدلې
دی راپاڅېده له ځایه، په رڼا پسې روان سو
ټوله شپه ئې مزل وکړ
چې سبا شو سپین سبا شو
لاروی د یو سیند غاړې ته نژدې شو
سیند اوار ډک بهېدلو
د سیند غاړې وې آبادي
چمنونه شنه پراته وو، سره ګلونه غوړېدلي
باغ او بڼ کې د مرغانو شورماشور وو
پېغلې نجونې ښکلې – ښکلې
ښه ځلمې ښایسته ځوانان وو
محبت و صفایي وه، ښکلول وو زغلول وو
مشران سپین ږیري ناست په دېره کې
مرکې وې مشورې وې
ماشومان د سیند په غاړه لوبیدل ټول
شورماشور وو غلغلې وې
او بیا هغه نااشنا پېغله
زوړ کمیس ځیري ګریوانه
ګرځېدله مسته – مسته خرامانه
شین کمیس نری شفاف ئې وو په تن کې نوی – نوی
د وحشي ګلونو تاج ئې پاس په سر پروت
...
لاروی د نیمو شپو چې دا حال ولید
بې اختیاره په خندا شو
ځکه پوه شو
چې له سره بیا شروع سو، یو ځل بیا – بیا
زوړ داستان د قهرمان ستر پهلوان ستر
او د ښکلي رب النوعي الهي د عشق او میني
یو ځل بیا له سره پیل شوه
افسانه لویه اوږده د تور ښامار مار.

(۱۸۲-۱۸۸)

نتیجه:

کله چې لاروی د تاریخ فلسفه درکوي او د آزادۍ او استبداد تر منځ د ابدي مقابلې په اسرارو باندي واقف کېږي، هغه خاندي او لدې کشف څخه لذت وړي، لاروی پوهېږي چې هر انسان، هر نسل او هره تاریخي دوره به د آزادۍ او اختناق تر منځ دا دایمي مبارزه امتحانوي. دا جنګ به تلپاته وي، د عدالت او ظلم تر منځ، د مساوات او نابرابرۍ تر منځ او د نور او ظلمت تر منځ به مدام د تاریخ په ژور تل کي جنګ، جدل او زورازمایي دوام لري.

والسلام

واحد فقیري – واشنګټن

د مارچ ۱۶، ۲۰۱۷

عصمت‌الله زهیر

# معاصر پښتو نظم؛ فکر او تکنیک

## ( سهیلي پښتونخوا او کندهار )

(دوهمه او وروستۍ برخه)

یادونه: داموضوع دا اوس د کوټې نړۍ‌وال کنفرانس کې راکړې وه (معاصر پښتو نظم د یوولسم سپتمبر اغېزي په سهېلي پښتونخوا او کندهار کي ) فکر مي دئ، چي وروسته لږ نور کار هم ورباندي وکړم.

مهم سوال دا دئ د افغانانو – پښتنو پر خاوره د ترهګرۍ په پلمه دا اوړده، ړنده، تپل سوې جګړه تر طالب شاهۍ ړنګولو د اسامه تر ختمولو محدود وه او که ئې ملي، مترقي او روښانـدو مبارزینو مبارزه هم د ترهګرۍ په لیست کي ونیوله؟

نوموړی سیاسي مورخ او څېړونکی عبدالله ملک لیکي: «د یوولسم سپتمبر را وروسته زموږ هیڅ یو سیاستمدار او څېړونکي د ترهګرۍ، خپلواکۍ او د ظلم او جبر پر خلاف په تپل سوو جګړو کي هیڅ یو توپیر نکوی، نو دا موږ امریکا او یورپي دولتونو ته خپلسري پخپله خوښه ورکړې ده، چي څه ډول ئې زړه سي د خپلواکۍ لاس ته راوړلو لپاره د ظلم او استبداد په خلاف مبارزو ته د ترهګرۍ نوم ورکړي ریښې ئې وکاږي. (۵)»

فاتح خلک تل مفتوح خلک خپل مریان پاموي او خاوره ئې خپله مقبوضه ګرځوي او مفتوح خلک خپلواکي هم د باداره د سرو زرو په پټناسه کي غواړي.

د امن کښتۍ له څو کلونو را رسېدلې ده خو امن پلي کول د دې خاورې په برخه تر اوسه لا رسېدلی نه دئ، نو ولي؟ د دا ولي جواب (د امن کښتۍ) نظم داسي راکوي:

را روان دی، دا دی راغـــی تـــر منزلـــه
پـــه بنـدر کــي دا دی سـو لنگـر انـدازه

ټول سامان او رنگ په رنگ ټول سوغاتونه
دلتـــه دی کـــوزول غـــواړي لـــه جهـــازه

خـــو واکمـــن د دې بنــدر دا ورتـــه وايـــي
چــي ده تــا خــو را بــار کــړې تشــه مینــه

اجازه نسته د ژوند چي څوک يې يوسي
افغانــانو تــه لــه دې ځایــه ځــي مړینــه

کر کــه راوړه، زهــر را وړه، کــه دا نــه وي
نـو دي تـگ د نـاممکن تـر حـده گـران دی

پـه وطـن کـي يـو مـوړ ټـول ورتـه خوشـحاله
وخـــت بـــدلیږي زیـــاتي امـــن را روان دی

د پښتنو – افغانانو پر خاوره امن ممکن دئ هم بـه راځي، ځکه چي د جگړې د کرایې لوبغاړي کردارونه موقعتي وي نه چي دایمي.

زموږ پر سپېڅلې خاوره چي د بدمرغیو، ناورین چي بېل – بېل لاملونه لري هم دا ډول د امن پـه لاره کــي بېــل – بېــل خنډونــه، ســتونزي او د گاونـډیو شرارتونه لیدلای سو.

(د امن کښتۍ) نظم دا وروستۍ برخـه ئې څېره داسي بر بنډوي، چي د کومو ستونزو لکبلـه پـر دې سپېڅلې خاوره امن ناممکن دئ:

را روان دی خـو پـوهېږي نـه چـي څنگـه
ځـان را ورسـوي دی زمـوږ تـر خـاوري

که هر څو چیغي وهي، داسي څوک نسته
چـــي لار ورکـــړي او د ده خبـــره واوري

وس کـوي مگـر هـیڅ وارئـې نـه جـوړیږي
چـي را وباسـي خپـل ځـان لـه سـمندره

پـه دې هیلـه چـي څـه لاره بـه پیـدا کـړي
لـــه يـــوه بنـــدره ځـــي تـــر بـــل بنـــدره

مگـر لاره ده چـي نـه ورځـي پـه مخـه
که هر څو ورپسې دی خوار سرگردان دی

پـه وطـن کـي يـو مـوړ ټـول ورتـه خوشـحاله
وخـت بـدلیږي زیـاتي امـن را روان دی. (۶)

د یویشتمي پیړۍ د جگړې وحشت مهذب انسان دې تـه اړ ایستلی دئ، چـي د انسـانیت پـه نـوم د دې پېښ ځناورتوب لکبلـه د انسانیت د نوم څخـه انکار سي، هـم دا موضوع ښاغلی افضل شوق (یویشتمي پېړۍ انسانه !!) نظم کي دا ډول مطرح کوي:

وایه ... ستا په خیال به هم

داسي ښه نه وي؟

چي له پاڼو او وښو جوړي جامې مو اغوستلی

او په غارو کي د غرونو

یا ځنگلو کي

اوسېدلی... غړیدلی

اسایش د ژوندانه هم نه وي داسي

زیبایش د ژوندانه هم نه وي داسي

هلي ځلي ... نه لالچ د پرمختګ وي

وي ... خو بس چې لږ احساس د سرېتوب وي

او یا وینه د انسان

انسان د لاسه

دربغه – دربغه کله هم نه بهېدلې.

(۷)

هسي هم په سیاسي، جغرافیایي، کلتوري او ادبي توګه پښتون – افغان وطن د یرغلګرو قوتونو لخوا محاصره دئ، دانشور، منورین او بیدار فکر خلک ئې په هدفي وژنو کي وژل کیږي ... کورونه او قبرونه ئې تخریبیږي، هم اورونه ورته ورکول کیږي، د قام په دې ناورین کي ماشومان او مېرمني هم ونه بخښل سوې ځکه دښمن ظالم دئ. (د انقلاب د ناکامۍ په نوم) پروفېسر راز محمد راز په دې لنډ نظم کي ورته داسي اشاره کوي:

چي اغیار یې تجارت کاندي د حسن
څومري سترګې د پښتون ولات نصیب سو

خوله په خوله چي غوښي ژویو موږ د خپلو
څو کامرانه د ظالم دښمن ترکیب سو. (۸)

پروفېسر رازمحمد راز د جمالیاتي او فلسفیانه انداز ځانګړی شاعر دئ، چي د لوستونکو په ذهنونو کي یو شمېر پوښتني را پیدا کوي او لوستونکي د خپلو پوښتنو په جوابونو پسي کتابونه پلټي هم د لوستو بیدار ذهنونو خلک پوښتي.

د یوولسم سپتمبر د خونړیزۍ او ورانکارۍ وروسته ئې ځیني داسي نظمونه لولو، چي د یویشتمي پیړۍ د نوي مزاحمتي او جداګانه لهجې نظمونه ئې

نومولای سو، د فراق صاحب په قول: «ادب د ټولنیز ژوند پرته تخلیقېدای نسي.»

د پروفېسر راز دا نوی مزاحمتي انداز د لبرال سامراج د استعماري خونخوارۍ او وحشت په خلاف بغاوت او په ټولنه کي فکري حرکت او بیداري ته زمېنه مساعدول دي:

د افغان ملت حرمت ته تر سر تېر یو
په سبا کي یې نصرت ته تر سر تېر یو

د ناپاکو یرغلونو لاري نیسو
د خپل خاک د خوب راحت ته تر سر تېر یو

هیڅ د امن درخواست نکوو مغل ته
موږ د توري قضاوت ته تر سر تېر یو

هیڅ تقسیم د کرښو نه منو په منځ کي
موږ د ویني قرابت ته تر سر تېر یو

سترګور شاعر، دخلکو په زړونو واکمن شاعر، د یار تر درشل په سکروټو کي تڼاکي پښې روان شاعر، د روح د تشنګۍ او د احساس د شدته، یو نغمه ګره فضاء او د مسرتونو چینه تراشي د ځورېدلي او ستومانه سوي انسان روح او زړه په اوبوي د ژوند توان وربخښي.

د پښتو د نوي لهجې په مزاحمتي شعر کي د پردېسۍ اوښکي، د وطنه دېلتون لکبله د فلسطین او جنوبي افریقا د مزاحمتي ادب د شعري تخلیق سره هم مقایسه کولی سو. د پردېسۍ او مزاحمت هغه کومي تلخۍ او واقعیتونه دي چي د پښتو معاصر نظم ته ئې نوی توان او نوې روح ور په برخه کړه د ښاغلي عطایي ملا (هل) نظم بېلګه وړاندي کولای سو:

رنګ د ګل غزل غواړي

ژبه د بلبل نسته

لمر د تندي وسومه

توره شپه کاکل نسته

سرې شونډې شکرې سته

ښې د ناز خبرې سته

باغ ځکر د حورې سته

سترګې سته کتل نسته

لوی جهان د ګلوسته

ډک خمان د ملو سته

خنګه چاته وخاندم

زما جانان کابل نسته

د ښاغلي عطايي ملا د شعر مترقي او مزاحمتي اړخ د پامه ایستلای او نه ګام تر اړولی سو. د عطايي ملا ځيني نظمونـه د میجکـل ریـالیزم روښـانه مثالونـه دي، مزاحمت او سمبول سره پیودل خپله د ریالیزم څخه میجکل ریالیزم پړاو دئ.

د (هل) نظم دغه ځنډه ئې د خپلي ادعا لپاره وړاندي کوم:

توري سته او زغري سته

ګوانښ سته او ډغري سته

موټې سته، ککري سته

یو جانباز اتل نسته

کورهم سته، کالي هم سته

دال او چپاتي هم سته

ژوند د زهرو خوند کوي

بل وطن دی خپل نسته

عطايي ملا د طبعیت یو قـانون هـم ښـورولی یا مـات کړی نه دئ، خو د ټولنیزو ناوړه او خپـل لاسـي قوانینـو خیتي ئې د خپل قلم په سوکه او د خپـل انتقـادي شـعر په وسیله څېرلي دي. عطايي ملا د ذوق او مزاج لـه پلوه ښخي نفیس او انتهايي جمـالي څـوک دئ، خـو د مـزاج له اړخه جلالي غوندي قلندر هـم دئ، چـي بیـا د ډېـر او ډېرو په کیسه کي هم نه دئ، ځکه چي وخـت د چـا پـه کیسه کي نـه دئ د فکري خپسکو پـه محـیط کـي خـو نوره هم ګرانه سي چي تور، ته تور سـپین تـه بـه سـپین وائې.

د عطايي ملا (د وخت ضرب) نظم د نـوي مزاحمتـي لهجې ناره د جمالیاتي انداز لکبله فیض احمد فیض تـه (د میني او انقلاب شاعر) وايي:

عموماً تاسـو بـه فکـر کـړی وي، کلـه بـه د یـو داسـي چاسره میلمانه سوي یاست چي یو ویړ، رنګین، د هر راز نعمتونـو ډک دسـترخوان بـه ئـې درتـه غـوړولی وي لاکن (خونـد) بـه دي د خـاورو هـم لـه دې دسـترخوانه حس کړی نه وي. کله به د یو داسي چا جونګړي ته هم ورپېښ سوی یاست چي پر سپېره ښوروا بـه ئـې میلمـه کړي یاست او څومره (خوند) به مو پـر اخسـتی وي، پـه نسبت د دغه ویړ او رنګین دسترخوان.

دا خوند فطري دئ، جرئت او صداقت ئې شرط دئ او څه مهال چې دا شرط په خطر کې احساسوي يو ربښتونی، ايماندار، مزاحمتي شاعر څنګه خاموش پاتېدلی سي، بلکي د مزاحمت لاره خپلوي.

حقیقت پسندي د عطايي ملا د شعر د روح درزا ده هم دا ئې په شعر کې د خوند را پيدا کولو ځانګړې نقطه ده، د میني او مزاحمت دا ځښلي فلسفې ښېلګه (د وخت ضرب) نظم پیل کې داسي لولو:

د زاهد سره جګړه، د ساقي سره خبره
د ښايسته وو سره روغه، يو خوږه د ناز ګيله ده
دا د حسن د خان ننګ دی، د جابرو تورو جنګ دی
ځي په پورته مخ په بره د لا لا د فوج حمله ده
دا د ځان د بت د ړنبو ته، د اور پړی دی اره ده
دا مغرور سر د نمرود ته، د خليل د مټ تېشه ده
وخت ؟
وخت روان باچا د رنګ دی، وخت د هوش هېره لحظه ده
وخت حسرت د تېر پرون دی، وخت سبا ته تلوسه ده

(۹)

په واقعيت کې سیاسي واک په اقتصادي واک کې پروت دئ، دا چې موږ په سیاسي هم اقتصادي توګه بېخي خوار څوک وو د يو پردی ړندې جګړې بلا مي هم د کور په وره کې ميلمنه سوه اقتصادي حرص مندان تر څو غواړي ميلمنه به پاته وي.

د ښاغلي عبدالباري جهاني (پښتنې نجلۍ) نظم چې د يوولسم سپتمبر وروسته د تباکاريو او ورانکاريو يو تصوير داسي راکاږي:

تاته دي خپلي مور کۍ نکل کړی
چې زموږ کېږديو کې اورونه نسته
پر ګودرونو پاولي نه شرنګېږي
د منګوټيو کتارونه نسته
اوس د شپېلۍ ستونی سندري ژاړي
نور له شپانه سره سورونه نسته
اوس به په دښتو کې اورونه اوري
د ژړو ګلو امېلونه نسته
ته اوس خبره يې چې ستا پر دښتو
اوس رمې نه ګرځي چمن نلري
پېغلي له زرکو سره نه ګډېږي
غاړګۍ نلري لمن نلري
اوس په پرديو کې پلو ګرځوي
مېنه ئې هېره ده وطن نلري
اوتري سترګي ئې له اوښکو سترې
ژوندي ته کور، مړه ته کفن نلري
د نيکه ستوني کې نکلونه وچ دي
د لمبې څنګ ته ماخوستن نلري.

(۱۰)

د کندهار ادبي مکتب شاعري، چې په اجتماعي توګه تر نظر باسو يو ټکی خورا پکښي روښان دئ، چې د ټولنيزو ناخوالو او ستونځو څنګلورې پاته سوې شاعري او د عقيدو په تناظر کې تخليق سوې شاعري

ده. ولي چي يوه بزګره يا فيوډله ټولنه ړانده فکري مقلدين روزي او فکري جمود ته زمينه مساعدوي، خو بدمرغي دا ده، چي دا هرڅه د يو متحد ملي او سياسي ګوند د نشتوالي لکبله عملي کيږي. يو متحد ملي او سياسي ګوند په خلکو کي بری، پوالی، هم فکري حرکت او بيداري را منځ ته کوي هم دا فکري حرکت او بيداري د استبداد او پټ دښمن په مقابل کي د مزاحمتي ادب د تخليق پيلامه ګرځي او مزاحمتي ادب د محکومو قامونو د خپلواکۍ په جنبشونو کي د شعوري مبارزې تادا و پامېږي.

دا چي د پښتو معاصر نظم مزاج فولکلوريک هم مزاحمتي پاته سوی دئ او کله – کله يو ډول ساه تنګي هم ځني احساسېږي ځکه چي د يوولسم سپتمبر را وروسته د پښتو په تخليقي ادب کي په ځانګړې توګه په پښتو معاصر نظم کي موضوعاتي، فکري او په هر اړخيزه توګه نوښت احساسولی سو، لاکن د تکنيکي پلوه هيڅ نوښت او بدلون د مثال په توګه راوړلی نسو، دا چي نثري او لنډکي شعر (مختصر نظم) د تخليق کچه هنري سوې هم ئې پله درنه سوې ده.

په کندهار کي د ځوان کهول بهير پر شاعري د يوولسم سپتمبر ورانکارۍ او تباه کارۍ په شدت سره احساسېږي ولي چي تخليق کونکی نبغ په نبغه د دې بربادۍ او خونرېزۍ عيني شاهد دئ.

د فراق صاحب په قول: «که چيري ادب له واقعيتونو بې برخي وي مطلب بنياد ئې د ژوند پر ربښتينو واقعيتونو بنا نه وي نو ئې صالح ادب نومولای نه سو.» (۱۱)

شهيد عبدالقديم پتيال چي د کندهار ادبي بهير د ځوان کهول استازی او هسکه غاړه شاعر وو. پتيال که څه هم د يوولسم سپتمبر را وروسته د ازاد او معری نظم له پلوه اغېزمن نوم دئ، هم ئې فولکلوريکو داستانونو ته د ازاد نظم چوکاټونه وتراشل هم ئې د محتوا له پلوه غني کړه.

د پتيال شعري انتقادي نظريات هم د لوی مخلص را وروسته د ځګرخون، پروين ملال، عبدالباري جهاني او کريمه رسولي انتقادي شعري نظريات دي، چي د زمان د واټنونو سره نوښت، پراختيا او نوي مزاحمتي لهجې نظريات وينو چي د (۱۳۵۰ ش) په دوره کي د کندهار ادبي مکتب د شعر د تخليق لپاره نوي موضوعات او عصريز مواد معارفي کړل، هم ئې اړين وګرځول هم دا ډول د خوځښت او نوښت څپې د کندهار ادبي مکتب په ډګر کي په زوږ سوې، هم ئې د شعر په ډګر کي د ملاازم تنګي کړی ماتي کړې او دې مبارزې د شعر په ډګر کي د سرونو باج هم له شاعرانو وغوښت او هم د ملحد ټاپې پر ولګيدې.

د پتيال شهيد (زما د سرکښۍ نارې) نظم دا يوه برخه وګورئ:

نو اې له تيارو څخه پيدا خلګو

اې څو ځوانيمرګو نيمه خوا خلګو

دلته لوښت پر لوښت دي انګارونه بل

دلته هر قدم کي تيندکونه خورئ

دا د عقابانو او زمريانو ځای

نه چي مو ځواني خاوري ايرې سي ژر

موږ به د ګناه په نوم جګړه کوو
خبرو به وپاس عرش اعظم لره
ولو به بيا تاسو د انکار په توپ
بل به د زردشت اورونه وساتو
داغ به کړو تندي د سجدې پر ضد
جوړ به کړو محشر پر زاهدانو بيا
وا به خلو دُره له محتسب څخه
خُم به د شرابو سرپرسر تش کړو
نيسو ملاجان به تر مرۍ هلته
ځان به جهنم ــ جهنم ګرم کړو
بيا به نو و دوی ته دغه ووايو
مې بولۍ مړ ژواندي او کمزوري هيڅ
تتي او نسکوري يې ونه ګڼئ
دلته يې حريف پر ګونډو کړی دئ
کړی يې دئ ګواښ و آسمانو لره
دلته يې اوږدې پښې اره کړې دي
څو مغرور سرونه يې پرې کړي دي
زما د سر کښې نارو
زما د سر کښې نارو.

(۱۲)

د يوه نژاد او يوه هيواد وګړي چې په زور او جبر فتح هم ئې سره بېل کړې ذهني، بدني او اروايي تشد وربانديې روا وګرځوې د خوراک، پوښاک او کور ئې بې برخې کړې کرکې، بدمرغۍ، ناهيلۍ او کړاوونه ئې ورپه برخه کړې د مذهب، اخلاق او انسانيت په نوم د سپکاوي او وژنې چلند ورسره انصاف ونوموې نو دا ډول ناروا چلندونه بدلولو لره د تاريخ او له ماضي څخه د انتقام اخستلو جذبه سره سکروټه سي او مزاحمت ځني را زېږي.

مثال يې د ښاغلي بهار ناصر (د پانسۍ پرۍ تر غاړه) هم دا ازاد نظم راوړلی سو.

ما نارې کړې اې خلکو
دا درواغ وايي دا خلک
چې ريښتيا ويل ګناه ده
حق ويل دی ډېر لوی جرم
حق ويل اجل د ځان دی
دا دی تاسي دا دی وينی
چې دا خلک درواغ وايي
ماچې ويل نن دا دئ
خلکو څنګ ونازولم
دا دئ خپل انعام يې راکړ
دا دئ تخت ته يې کړم پورته
دا دئ تاج يې را پر سر کړ
دا دی هار د مرغلرو يې را تاو کړ زما له غاړې

څومره ښکلی، څومره ښکلی

نابېره مي پرمخ د څاپېر ترڅ سو

بس خوله بنده کړه لاس کښېته

دلته زه هم را په هوښ سوم

چي کتل مي اې ملګرو

تور نقاب کي سرپټ وو

د پانسۍ پرۍ تر غاړه.

(۱۳)

د هنري تهامس په اند: «کله چي موږ يو ښکلی شی تخليق کړو نو موږ پر مرګ بری تر لاسه کړو.»

اوس چي موږ ګورو د يويشتمي پيړۍ پر پښتني مېنه د مرګ پر خلاف د ژوند په پلوي د هيلو او مبارزې توکي غوړېدلي دي او د ځوان کهول استازي شاعران په خپل شعر کي په پراخ مټ استفاده ورځني کوي او په دې بهير کي موږ د محمديار يار، واصل حسنيار، سعيد لودين، حکمت سروش، يتيمه سلګۍ، محمد نعيم ازاد، ميرحسن خان اتل، خان زمان کاکړ او زيار کښ مندوخيل نومونه يادولی سو.

له تېرو دوو لسيزو په پښتو نظم کي د تکنيک له پلوه کوم نوښت او تغير که نه تر ستر ګو کيږي خو د محتوا، فکري پراختيا او مزاحمت له پلوه ئې غني نومولی سو.

ماخذونه:


۱. افغانستان جديد او قديم، عبدالله ملک (۵۳۷)

۲. ادب اور زندګی، فراق ګور ګکپوري(۸۵)

۳. ادب اور اديب، ترجمه فاخر حسين (۱۴)

۴. افغانستان جديد ( ۵۶۲)

۵. افغانستان جديد(۵۲۷)

۶. کر د ګلو، درويش دراني (۱۹۰-۱۹۶)

۷. په لټون ستا د څېرې. افضل شوق (۱۷۲)

۸. خزان زما په اوښکو ژاړي. پروفېسر راز محمد راز (۱۲۱)

۹. د وخت ضرب. عطايي ملا (۷۵)

۱۰. کوه طور، عبدالباري جهاني (۱۸۷)

۱۱. ادب اور زندګی(۱۷۷)

۱۲. انکار، عبدالقديم پتيال (۱۰۰-۹۹)

۱۳. موسمونه هم بدليږي، بهار ناصر(۱۵۶-۱۵۷)

محمدابراهیم سپېڅلی

# بسم الله غرنی؛ وطن پرست شاعر

د روزګان ولایت د دهراود ولسوالۍ د (ترک یتیم) کلي یوه زرغونه او سمسوره سیمه ده؛ ددې سیمي خلک اکثره په کښت او کرونده اخته دي.

خلک په خپل ژوند خوشحال دي.

وروروليي، مینه، وطندوستي او میلمه پالنه د هر چا په زړه کي ځای لري.

د (ترک یتیم) کلي په ابادہ سیمه کي ښځي او نارینه په خپل ژوند خوشحال دي او هیڅ د ویري احساس نه کوي.

خوانان د ورځي په ځمکو کي کار کوي او دشپې بیا تر ډېره مجلسونه کوي.

سپین ږیرو د مسجد دېوال ته څنګو نه اچولي او پخوانۍ کیسې کوي.

په عمر پاخه خلک پر خپلو ځمکو او کروندو باندي ګرځي او له بزګرانو څخه د حاصلاتو پوښتنه کوي.

د (ترک یتیم) د کلي ملک عبدالحق د حاجي مرحوم عبدالحمید زوی په یاد کلي کي یوه پېژندل سوې څېره ده، اکثره وخت پر خپلو ځمکو ګرځي او ځیني وخت له بزګرو سره په کارونو کي مرسته کوي او د ورځي په نیمایي کي بیا د ستړیا رفع کولو پرمهال له کروندګرو سره په ورین تندي مجلس کوي.

بزګران د ده له ښې ګذارې خوشحال دي او هیڅ داسي فکر نه کوي، چي دوی له خپل سرخیل سره ناست دي، څکه د دوی مجلس او خبري لکه د خوږو ملګرو داسي دي.

نن هم ملک عبدالحق له خپلو کروندګرو سره ناست دی چای څښي، د تندي خولي ئې په لستوڼي پاکي کړې او په ورین تندي ئې له بزګر سخي داد څخه پوښتنه وکړه، سږکال به حاصلات څنګه وي؟

سخي داد لا ځواب نه و ورکړی، چي د کلي یوه ډله کوچنیان کروندې ته راغله او د سلام ویلو سره سم ئې پرملک عبدالحق د زوی زېری وکړ.

ملک عبدالحق د سخي داد ځواب ته پاته نه سو او برابر په ډیري خوشحالۍ کورته راغلی.

په کور کې خوشحالي ده او د کورنۍ ټولو غړو مبارکي ورکړه، چې (زوی دی پیداسوی دئ)

دی ډېر خوشحال دئ او په خندانه لهجه هرچاته د مبارکۍ په ځواب کې وایي: (خیریوسی، خدای دي ئې نیک مبارک کړي.)

ملک عبدالحق له دریو ورځو وروسته د نږدې کلي ملاامام راوست او پر خپل زوی ئې د بسم الله نوم کښېښود.

د نامه میوه وویشل سوه او خوشحالي نوره هم ډېره سوه.

د خدای شپې او ورځې تېرېږي، بسم الله اووه کلن سو، پلار ئې په کلي کې نږدې مکتب (ملااحمد عالی لېسې) ته شامل کړاو ډېر ژر پر معلم صاحب ګران سو، چې درسونه ئې تر نورو ټولګیوالو ښه زده کېدل.

بسم الله پر ټاکل سوي وخت مکتب ته تلی او پر ټاکل سوي وخت له مکتب څخه کورته راتلی.

له ده څخه د ټولګیوالو ترڅنګ خپل استادان او ان د مکتب ملازمین هم خوشحال وه او د ده د ښو اخلاقو ستاینه به ئې کوله.

بسم الله د نورو ځوانانو په ډول زیات وخت په مجلسو نه، بلکي په درس ویلو تېروی او دولس کاله ئې ښې نومرې ترلاسه کړې، په کال (۱۳۵۶) کې ئې د کانکور ازموینه ورکړه او د کندهار د ښوونکو د روزنې عالي مؤسسې (ریاضي او فزیک) څانګي ته په لوړو نومرو بریالی سو.

د کندهار ښاراو دلته د لوړو زده کړو تحصیل د بسم الله پر ژوند نورهم مثبت اغېز وکړ او دغه اغېز ئې له سیاست سره اشنایي او د هیواد پالني اور په زړه کې بل کړ.

بسم الله له دې وروسته د (دهراود) ولسوالۍ ساده ځوان نه و، هغه دلته ملګري، خو له خپل خاړپوځو له کلي څخه د لیریوالي له لاسه به ئې کله ناکله ذهن ته یوشمیر موزون کلمات راتلل او د کاغذ پرمخ به ئې د شعر په نامه لیکل او کرار - کرار ئې له نوم سره د (غرني) تخلص هم زیات سو.

دوه کاله ئې د کندهار د ښوونکو د روزنې په عالي مؤسسه کې لوړې زده کړې پای ته ورسولې او د نورو لوړو زده کړو لپاره یې د بلغاریا هیواد ته د سفر موزې په پښو کړې.

بسم الله خان غرني د بلغاریا په دولتي پوهنتون کې د سیاسي علومو په څانګه کې ماستري وکړه او دلته پاته کېدو ئې نورهم ذهن روښان اود هیواد مینه ئې نوره هم په زړه کې وغوړېده.

که څه هم هلته د تلپاته کېدو زمینه ورته برابره وه، خو د ګران هیواد محبت بېرته خپل غېږ ته راکش کړ.

له راتګ سره سم ئې پر ځینو دولتي څوکیو خپل هیواد ته خدمتونه وکړل او ان د هیواد ساتني په لار کې عملاً سنګر ته هم ولاړ.

اوس، چې له هغه وخته ډېر کلونه تېرېږي، د بسم الله غرني سر، ږیره او بریتونه ټول تک سپین دي.

اوس ئې عمر د شپېتو کلو ته نږدې سوی دئ، خو همت، پښتونولي او له هیواد سره ئې مینه لا هغسي ځوانه ده.

بسم الله غرني په هیواد کې ټولي ناخوالي په سترګو لیدلي او دغو ناخوالو ئې د شعر رنګ حماسي

کړی دئ، هر کله چي ئې زړه ډېر تنګ سي، نو د خیال کوه قاف ته پناه یوسي او د شعر له شاپیریانو سره د ګران افغانستان پر روانو حالاتو اوښکي تویوي.

غرني تراوسه تر زرو ټوټو زیات شعرونه لیکلي، مګر اووه سوه ټوټي ورسره خوندي پرتې دي.

د ده شعرونه تر شلو زیاتو محلي سندرغاړو د موسیقۍ له په زړه پوري نغمونو سره ویلي، چي خورا ډېر اورېدونکي لري.

نوموړی اوس د طلوع افغان ورځپاڼي د تصحیح مدیر دئ او په دې سپینه ږیره د طلوع افغان مضامین په خورا دقت داسي تصحیح کوي، چي اکثره ځوانان ورته حیران دي.

که څه هم پر بسم الله غرني تر نیمي پیړۍ زیات وخت تېرسوی دئ، مګر تراوسه د یو کلیوال پښتون په ډول په یاري کي صادق، پر ژمنه ټینګ، د دوست په خوشحالۍ خوشحال او په غم ئې غمجن دئ.

اوس هم زیات وخت په مطالعه او مطبوعاتو تعقیبولو تېروي او ځیني وخت له خپلو همزولو سره هم کښېني او پر زړو خاطرو تبصرې کوي.

زه بسم الله غرني ته هیواد پرست شاعر وایم او دا دوه شعرونه ئې له تاسي سره هم شریکوم.

د شعر نمونې:

ډېر خوروي مي شپه او ورځ د ولسونو اوښکي
ځکه ګرېوان ته مي بهېږي د غمونو اوښکي
یوه ځلوښتي د زوم او ناوي لا پوره سوې نه وي
پر شهادت یې بس شروع سي فریادونه اوښکي
ها د کوزدې دسمال تري مور یې په شناخته پوري
سپین ږیری پلار یې تویوي بس د سرو وینو اوښکي
شهید بچی پر جنازه چي مور او پلار ته ور وړي
ملایکي پر تویوي له آسمانونو اوښکي
کډې په شا د مظلومانو دلته هلته ګوره
تل یې له ستر ګو څه جاري وي له ظلمونو اوښکي
"غرني" خوري د زړګيویني د هغو له لاسه
چي هدیرو کي تویوي څوک پر قبرونو اوښکي

***

خدای به تېري توري شپې کړي بیا به روڼ سهار پیداکړي
دغه تیت پرک کاروان ته په کار یوه سالار پیداکړي
دا خزان ظالم چي لوبي د ګلانو په ژوندون کړي
د خزان په مقابل کي به رنګین بهار پیداکړي
له کرورو څه به راسي بلبلان ښکلو باغو ته
پاک سبحان به د زاغانو د ظلمو مهار پیداکړي
دغه تش په نوم ماليار به تر قیامته پوري نه وي
پر ګلانو چي زړه سوځي ښه زړه سواند ماليار پیداکړي
دغه تور زاغان چي نن ښکلي ګلباغ کي بدماشي کړي
دا د دوی محوه کېدو ته به ښکاري سیار پیداکړي
دغه دوې توټې بدن به "غرنیه!" بیا یو ځای سي
د دې دوو ټوټو یو ځای ته ډاکتران به لار پیداکړي

بشير احمد بشارت

# د نوښتونو څپې

شعر له يوې خوا دشاعردقت غواړي، له بلې خوا دهغه پراخه مطالعه، پر خپله ژبه پوهه اولاسبرى، دسيمي سياسي، جغرافيايي، تاريخي، اجتماعي حالات، فكري قوه او همداسي ټول شعري نزاكتونه ورته معلوم وي، كه نه د شعر بنسټ به ئې كوږ او كمزورى وي.

پورتنيو توضيحاتوته په كتوسره په شعر كي دنوښت خبره د همدغه دود له چوكاټه نه سي وتلاى، ځكه چي دا دوخت غوښتنه ده.

كه د مرحوم عبدالنافع (صميم يار) شاعرى ته وكتل سي د نوښتوپراخه زېر مه په خپله محتوا كي لري.

دغه لاندي شعر ئې دنن څخه تقريبا (۱۹) كاله مخكي ليكى دئ، خودكليماتو نوى والى، دتركيبو جوړښت، دتورو اوډنگ، هنري ژبه او احساس ئې د اوسني ښه شعر نماينده گي كوي. سړى داسي فكر كوي چي دا اوس به ليكل سوى وي:

دستر گو په سره فرش كي مي دلدار پاشي سكروټي
دحسن انعكاس كي يې سينگار پاشي سكروټي
دعقل پر بوراق مي بيا جنون خيال په سفر ځي
چلتار مي دعشق و تړى چي يار پاشي سكروټي
كچكول په څنگ ورځمه ورته سوال كړم د سرو شونډو
دحسن په كعبه كي يې رخسار پاشي سكروټي
دسپين جبين اسمان كي يې عشاق واړه په دار دي
محراب كي دابرو يې زلفقار پاشي سكروټي
په وصل كي يې ځاځي له زړگي څخه سرې ويني
ژړيږي صميم يار ديار گفتار پاشي سكروټي

شاعر دلته دمړژواندو كليماتو څخه پر هېز كړى دئ، د شعر محتوايي دژونديو كليمو، يو مست شور، شاعرانه احساس، دميني او عشق پر محور راگرځي، چي د پسرلي د سيند په څېر مست او څپې وهي.

د وروستي بيت د (ړ) د توري تكرارئې د موسيقۍ مالگه ورډېره كړې ده.

د شعر ويلو ذوق هر څوك لري، مگر ځيني ئې د اظهار لپاره هنري ژبه نلري، چي د خپل زړه خواله له نورو سره شريك كي.

مرحوم صميم يار د خپل هنر او تخليق لپاره داسي شاعرانه او د جرائت څخه ډک ځواک در لودئ، چي د هغو اظهار ئې په ډېرلوى زړه كوئ، چي په اصطلاح د خپل وخت او په خپلو همزو لوكي يو كلان كار شاعر وو.

د الفاظو رنگا رنگي ئې د شعر ذايقه ډېره كړې ده.

شمعي سوځه ليري – ليري زما خواته مه ويلېږه
زه دخپل اشنا په غم – غم په لمبو كي سوم تناكي

دنگار د نگا خوى دئ په مژگانومي رنځور كړي
صميم يار تحفي دي ايښي خپل د زړه اوسر سوداكي

د شاعر شعر د شعار له قفس څخه ازاد سوی دئ او دخپل مهال د مرده باد او ژنده باد تر وچ کلک شعار تراغېز لاندي ندی راغلی، ځکه چي ټول الفاظ ئې د نوښت په خم رنګولي دي، بيائې په ډېر کمال او ډلي دي.

چاپير يال، شاعر او ژوند يو دبل سره مرسته کوونکي دي. د همدې چاپير يال څخه شاعر د ژوند خواږه او ترخه د خپل فکر په لاسو راټولوي او هغوته سمون او بريښ ورکوي؛ ځکه چي ژوند دچاپيريال په فانوس کي بنده شمعه ده، چي د راز – راز پېښو څخه متاثيره کيږي.

په پورته قطعه کي شاعر ځيني خام توکي راټولوي او د هغو څخه دياس اونا او ميدی تابلو جوړوي، چي د شعر په ساحرانه ژبه دشمعي سره دبېلتون خبري کوي، په شعر کي هنري او تصويري ژبه د شاعر بل کمال دئ، چي دا کمال مرحوم صميم يار در لودئ.

لېمې کښېږدم د صورت په آينه کي
اوښکي توی سي بيا د حسن پلوشه کي
دبنوګـذار د زړه پـه سـرو پردوکـي
کـه لا لـه خنجر خوړلی پـه سينه کي
دا مهتـاب سـره سـيالي د ترورمـی ده
که دي خال ښکاري د هجر په جاله کي
يـا مي وليـدې سکروټي په ګلاب کي
يادي سرې سترګي رخسار سره کاته کي
يـا افتـاب امېل جوړ کړی دئ د ستورو
يـا هر ځای عشاق لـه تانه ځلېده کي

دغه غزل د عارفانه تجاهل سره نوي ترکيبونه او تشبيهات په خپل وجود کي لري، هر ترکيب اوتشبيه په خپل وخت کي نادره وي، چي وروسته دابتذال کندي ته لوېږي. دغه غزل ته که دماضي په عينکو کي وګورو، نو د خپل وخت بې جوړې غزل ئې بللای سو.

په شعر کي هره کليمه د ژوندي موجود حيثيت لري. دغه ژوندي موجودات يو تربله خپلوي لري، تضاد لري، پخلا کيږي، ماته او بری لري، لنډه دا چي دبېلا بېلو شرايطو تر تاثير لاندي راځي، ځانته د ژوند او استوګني زمينه لري.

په حيقيت کي شاعر د همدغو ژونديو موجوداتو سره سروکار لري، بايد د دوی ټوله حالات ورته معلوم وي او هر يو پر خپل ځای وګماري. مرحوم صميم يار دهمدې ژونديو کليماتو څخه ترکيبونه جوړ کړي دي، چي وروسته ئې د شعر جامه ځيني سکښتې ده.

جاردي حسن سم چي پټ دی په نقاب کي
ټول صورت مي اوښکي – اوښکي ستا سينګار ته
دزړه ويني مي تويږي ستا رونـا تـه
چي مي سترګي سي د وصل ستا رخسار ته

د کليماتو پر ځای کارونه لکه دپيسو پر ځای مصرفول چي بايدبې ځايه ونه کارول سي، دپورته قطعې کليمات هم ژوندي دي او هم پر خپل ځای اوډول سوي دي، د نوښتګر شاعر خاصيت همداسي دئ، چي په لږو کليماتو کښي پراخه موضوع ونغاړي، د ډېرو مصارفو څخه پر هېزوکي.

زما په نظر دشعر خوند هغه مهال ډېرېږي، چي شاعر دخپل وخت تجربې په کښي اخښلي وي.

نن دي حسن تـه خـو درايـه سجدې لګوم
دخيال منګولي پر اطلس ستاد کعبې لګوم
جار دي سم ځومره يې مغرور فرمان دي ماته منظور
ستا د درګاه پر تورو خاورو بـه لېمې لګوم
سوم دربدر خاوري پر سر ستاپر دربار ژړېږم

لـه انتظـاره پرهـري سـترګي رنـدې لګـوم
یا پاک شراب ستا دیدار دي یادي فیض دکلام
چـي ښـوا دي دعشـق اور کـي لطیفـې لګـوم
که مي رقیب وخپل جنت تـه پـه خندا ورلېږي
زه بـه پـه پښـو کـي ستا دمینـي زولنـې لګـوم
د ملنګۍ چلتار ترمه ستا په خوب صمیم یار
کچکول پـه وینو لـه فغانـه سترګي سرې لګوم

تر کومه ځایه چي مي دصمیم یار اشعار ولوستل، نو دا راتـه څرګنـده سـوه، چـي پـه خپـل هنـري ژونـدکي دنوښت پلوی پاته سوی دئ؛ ځکه ده ډېره هڅه کړې ده، چـي شـعر دهنـر پـه خـم ورنګـوي او د خیـال یـوه رنګینه تابلو ځیني جوړه کي.

شعر پوهان وایي: ښه شعر هغه دئ، چي هـم خوند درکړي او هـم فکر. کـه همدغـه (۱۹) کلن شـعر دنن دهنـر پـه کـاڼي وتلو، نو زه بـاوري یم چي کم بـه ونـه خېژي، ځکه دوی (۱۹) کاله مخکي داسي څه ویلي دي، چي اوس ئې زموږ ځیني شـاعران وایي. دا د دوی ریاضت او د شـعر سره انصاف ښیي، هغـه پـه شـعري نزاکتو پوه وو، په ډېر نرمښت ئې چلنـد ورسره کـوی. د شعر پر ملغلرو باندي ئې ماتوږ نه را اخیستی، چي ټولي رېز مربزه کي، بلکي د هغه د هر لفظ تراشل او اوډل زده ول، راسئ چي دا خبري په لاندي بیتوکي سره سپیني کو.

دنـوي ژونـد نـوی اختـر راتـه څـه راز راوړي
خط دجانان مي په خولګۍ د ذهـن باز راوړي
دخدای لپاره به ددې خوښۍ اسمان لـره ځـم
چـي د شـفق رنګـین پیغـام تـه یـې اغاز رواړي
نغمه – نغمه سي ده صنم په رنګ ښکلا اغوندي
ځلا رقصیږي خوشالي دخوښـۍ ساز راوړي

ځینـي موضـوعي شـعرونه لیکـل سـوي وي مـثلا: دپسرلي، اختر او د ځینو دو دیزو مشاعرو لپاره. د داسي اشعارو سره ډېر زور سوی وي، چي فقط دهغې ورځي لپـاره ژونـدي وي، د شـاعر تـر مخـه د مـرګ کنـدي تـه لویږي، زړوته هیڅ لاره نه کـوي، خـو د دغـه شعر سـره یـوازې داچـي زور نـدی سـوی، بلکـي د هنـر مالګـه ئـې ورډېره کړې ده، چي موضوع ته ئې چنداني دچانه فکر کیږي، دلته اختریز پیغام په ښکلو الفاظو کي وړانـدي سوی دئ.

د شعر دزماني واټن پـه هکلـه یـو څېړونکـی وایـي: «شعر اصلا دانساني عواطفو هغه سیند ته ورته دئ، چي لـه یـوې ناپایـه ماضـي څخـه رابهیږي، تـر مـوږه ځـان را رسـوي او لـه مـوږ څخـه مسـتقبل تـه ورتېرېږي... خـو دزماني شرایطو او بېلا بېلو چاپیریالي پېښو او حوادثو له امله مختلیف رنګونه اختیار وي.» چي په یـوه شـکل نه په یوه شکل د ماضي رنګ په حال کي او د حال رنـګ په مستقبل کي لیدل کیږي.

د مرحوم صمیم یار داځوبیتونـه بـه د دوی د ماضـي سره وګورو:

د رباب د نغمو رغ دئ د ساقي په سرو لاسو کي
د شـرابو مسـتي جـوړه داتـڼ پـه غلبلـو کـي
رانسکوره رقیبـان دي دیارۍ لـه غېږي لویږي
دجانـان دښـو تـوري درازونو پـه سـینو کـي
رالوېدلي سره غمي دي اتشي مخ یې ښکاریږي
بارانونه ددیدار دي دخولګۍ پـه سر ولعلو کي
نیـول سـوې ده لمـن لېونیـو پـه لاسـونو
په کښي وړي داور سکروټي دجنون په زولنو کي

که لږ ځېر سو، نو پـه ریښـتیا دماضي د شعر رنګ دصمیم یـار د شعر سـیند تـه ورګډ سوی دئ، خـو کـه ژوند یاري ورسره کړې وای، کېدای سـي چي دخپـل سبک په لړلو سره دنورو هنري پنځونو څخه ئې ټولنـه برخمنه سوې وای.

نور مو دسر ماغزه نه خورم د مرحوم صمیم یار دا وروستی بیت هم را سره ولولئ:

د تور قبر په لېندۍ کي چي مي سترګي واړولې
دفنـاه پـه اینـه کـي تصـویرونه دي ځلیـږي

زبیر افغان

# سوله؛ نبوي سنت او بشري اړتیا

جنګ او جګړې غیر نارمل او ناطبیعي حالتونه دي. انسان په فطري لحاظ د جنګ او خشونت غوښتونکی نه دی؛ بلکي د هغه په چاپیریال کي ځیني داسي پیښي کېږي چي انسان له خپل فطرت او طبیعت څخه د مخالف شي خوښولو ته اړ کړي.

هر ماشوم چي کله له موره پیدا سي، نو مور ئې وینو چي له کینې، غوسې او جنګه خلاص وي. زموږ په ټولنه کي ډېری ماشومان د ورځي له خوا مور، پلار یا د کور بل غړی وهي، اما له وروسته د ماشوم په ذهن کي هغه وهل، له ده سره سوی زورزیاتی، ښکنځل او جنګ هېر وي او په ذهن او دماغ کي ئې نه کرکه وي او نه کوم ډول غوسه، بلکي په پاک زړه او ذهن له هغه کس سره ناسته پاسته کوي او په خوشالي ور سره مخېږي.

د کرکي، شخړې، جنګ، خپګان او... ناروغۍ د انسان ذهن ته له ټولني او چاپیریال څخه د یوه بسته پروګرام په بڼه انستالېږي. یوه بله تجربه مي هم څو پلا کړې ده. د یوې داسي کورنۍ ماشوم چي مور و پلار ئې تر ډېره حده له کینې، نفرت، غوسې او جنګونو څخه بېزاره وي، هغه تر پلار او مور هم په لوی والي کي ډېر نارمل حالت ته نژدې وي او له دې یادو شیانو ئې بد کېږي. اما بل لور ته هغه کسان چي له کینکښ او جګړه مار پلار و مور څخه پیدا سوي وي، هغوی تر پلار هم ډېر کاړه، کینه کوونکي او پر مازي خبره جنګ ته اماده ولاړ وي.

له دې ښکاري چي انسان په فطري ډول له دې ناروغیو خلاص وي او دا ویرسونه ئې د ټولني ډالۍ ده چي خپل نوي راتلونکي غړي په نازوي. د مینه ناک، سوله پاله او له زور زیاتي د بېزاره انسان پیدا کونکي لپاره اړینه ده چي د خپلو ماشومانو تر بیه او روزنه په سم ډول وکړي، چي له دې بیماریو ئې ټول ژوند خلاص کړي.

د انسانانو په ټولنیز ژوند کي داسي وختونه هم پېښېږي چي طبیعي حالت ختمېږي او په ټولنه کي د مختلفو لاملونو له امله جنګ جګړې رامنځته کېږي. جنګ یوه ټولنیزه پدیده ده چي ټولنیزي بدۍ او خرابۍ هم پېښوي. له مالي زیانه رانیولې بیا د انسان تر ژوبلي او مرګه هر څه هر وخت پکي شوني دي. له جنګه فقر پیدا کېږي، له جنګه بې عدالتي رامنځته کېږي، جنګ کاروبار ته زیان رسوي، عامه لاري، کلي او ښارونه ناامنه کوي، تاوان ئې نه یوازي هغو دوو طرفونو ته رسېږي چي مخامخ یو د بل په وړاندي جنګېږي، بلکي هغه څوک ئې هم زیان ویني چي مستقیما پکي دخیل نه وي خو د جنګ په جغرافیه کي اوسي؛ حتا جنګي سیمي ته نژدې پراته ولسونه او ملتونه ئې هم له زیانه خوندي نه پاتېږي.

له دې امله عقل او انساني تاریخ و تجربه ټول وايي چې جنګ غیر نارمل حالت دی او هوښیاره ټولنه او ملت هغه دی، چې ژر تر ژره له جنګي حالت څخه خپل طبیعي او فطري حالت ته ستانه سي. د جنګي اسبابو په له منځه وړلو ټولو جنګي ډلو ته د جنګ بانه ور ختمه کړي او له جنګي حالته د سولي، له کرکي د میني، له ناامنه د امن لور ته سوله ییز یون پیل کړي.

همدا عامل دی چې قران کریم په جنګي حالاتو کي هغه مهال د سولي غوښتني ته د مثبت ځواب ور کولو امر کړی چې یو لوری ئې هیله وکړي:

وَإِن جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا. (الانفال: ۶۱)

ژباړه: او که دوی سولي ته میلان وکړ؛ نو ته هم ورته میل وښیه.

د قران کریم د دې آیت امر لومړی د الله هغه پیغمبر ته راجع وو، چې پر ضد ئې مکیانو، یهودو، کوچي عربو او نصرانیانو وسله اخیستې وه او یوازي د دین له امله ئې ور سره شخړه در لوده. دلته هم الله تعالی امر کړی دئ، چې که ستا دوښمن سولي ته میلان وکړ، نو ته به هم حتما سولي ته چمتوالی ښیې او په هیڅ صورت ئې د جنګ د تمدید جواز نه دی ور کړی. قران کریم سوله غوره بولي:

وَإِنِ امْرَأَةٌ خَافَتْ مِن بَعْلِهَا نُشُوزًا أَوْ إِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا أَن يُصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا وَالصُّلْحُ خَيْرٌ. (النساء: ۱۲۸)

ژباړه: او که کومه ښځه د خپل مېړه له کوم بد خویي یا بې اعتنائي وویرېده، نو په دې کي څه ګناه ور باندي نسته چې په خپلو کي کومه صلح وکړي او دا صلح غوره.

د سورت النساء دغه ایت د مېړه او مېرمني تر منځ پر ستونزو ړغېږي او هدایت ئې کړی، چې که یوه مېرمن له مېړه ډارېده چې دې ته پاملرنه نه کوي، نو بهتره ده، چې پر ځینو ټکو توافق سره وکړي او تر بېلتون ئې دا سوله ورته غوره ده. له یوه لوري به ئې شخړه پای ومومي او له بله لوري به یوه کورنۍ له ړنګېدا ژغورل سوې وي.

نو چې د یوې کورنۍ په اړه د الله هدایت دا دی چې سوله ورته غوره ده ایا د یوه درست ملت او هیواد په اړه به قران کریم څنګه د سولي امر نه کوي او ولي به ئې غوره نه ګڼي؟! له دې امله موږ په قران کي له نامسلمانو سره هم د سولي په اړه آیاتونه وینو.

الَّذِينَ عَاهَدتَّ مِنْهُمْ ثُمَّ يَنقُضُونَ عَهْدَهُمْ فِي كُلِّ مَرَّةٍ وَهُمْ لَا يَتَّقُونَ. (الانفال: ۵۶)

ژباړه: هغه چې ته ور سره تړون کوې، بیا دوی هر وار خپله ژمنه (تړون) ماتوي او دوی ځان ساتنه نه کوي.

وَإِن كَانَ مِن قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ اللَّهِ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا (النساء: ۹۲)

ژباړه: او که (په تېروتنه قتل سوی مومن) له هغه قومه وي چې ستاسو او د دوی تر منځ تړون وي؛ دیت به ئې اهل ته سپارل کېږي او یو مومن (غلام یا مینځه) به ازادېږي، که یې دا پیدا نه کړ، پرلپسې دوې میاشتې به روژه نیسي، د الله له لوري رجوع ده او الله پوه د حکمت خاوند دئ.

وَإِنِ اسْتَنصَرُوكُمْ فِي الدِّينِ فَعَلَيْكُمُ النَّصْرُ إِلَّا عَلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ (الانفال: ۷۲)

ژباړه: او که له تاسو د دين په اړه مرسته وغوښتل سوه، نو کومک در باندي لازم دئ، مګر هغه قوم چي ستاسو او د هغوی ترمنځ تړون وي، الله تعالی ستاسو د اعمالو ليدونکی دئ.

په دې ټولو اياتونو کي له نامسلمان قوم سره د مسلمانانو د سولي او تړون يادونه سوې ده، چي نه يوازي جواز ئې ترې ثابتېږي، بلکي د لومړي ايت د امر له مخي که ئې د مسلمانانو څخه غوښتنه وسي فرض ده، همدا مطلب په دې ايت کي هم په صريحو الفاظو ياد سوی:

إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ إِلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِيثَاقٌ أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ أَنْ يُقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقَاتَلُوكُمْ فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا (النساء: ۹۰)

ژباړه: مګر هغه کسان (مه وژنئ) چي داسي قوم ته پنا يوسي چي ستاسو او د هغوی ترمنځ تړون وي، يا تاسو ته په داسي حال کي راسي چي سينې يې ستاسو سره له جنګه تنګي سوې وي او يا چي له خپل قوم سره په ملتيا جنګ وکړي؛ خو که د الله خوښه وای، پر تاسو به ئې مسلط کړي وای بيا به ئې جنګ در سره کړی وای، نو که ئې له تاسو څانونه ګوښه کړل، جنګ ئې در سره ونه کړ او د سولي وړانديز ئې در ته وکړ؛ نو الله تاسو ته پر هغوی (د جنګ) هيڅ لار نه ده در کړې.

دلته ويل سوي چي که جګړه مار هغه قوم ته پنا يووړه چي تاسو ور سره تړون لرئ، نو غرض به نه ور لرئ او پنا ئې پيدا کړه. د هغه چا له جنګه بندېدا او سولي ته تمايل خدای د يوه نعمت په توګه مسلمانانو ته ياد کړی، چي مخکي ئې جنګ ته مخه کړې وه. الله امر کړی چي که د سولي وړانديز درته وکړي؛ نو نور د جنګ لپاره هيڅ شرعي بانه نه لرئ او يوازي سوله د خدای خوښ کار او په همدې حالت کي امر دی.

له دې امله رسول الله ﷺ په خپل ژوند کي تر خپله وسه له جنګه مخ اړاوه، لکه چي يوه حديث کي دي:

لَا تَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ، وَسَلُوا اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ الْعَافِيَةَ (مسند احمد: ۱۹۱۱۳)

ژباړه: له دوښمن سره د مخامخېدا هيله مه کوئ، الله تعالی (په چارو کي) بريالتوب غواړئ.

په يوه حديث کي دي چي الله تعالی په نرمي خپل بنده ته هغه څه ور کوي چي په سختي ئې نه سي تر لاسه کولای:

أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «يَا عَائِشَةُ» إِنَّ اللهَ رَفِيقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ، وَيُعْطِي عَلَى الرِّفْقِ مَا لَا يُعْطِي عَلَى الْعُنْفِ، وَمَا لَا يُعْطِي عَلَى مَا سِوَاهُ" (مسلم: ۲۵۹۳)

ژباړه: رسول الله ويل: ای عائشي! بېشکه الله نرمي کونکی دی او نرمي يې خوښه ده، په نرمي هغه څه ور کوي چي په سختي ئې نه ور کوي او هم هغه څه چي له نرمي پرته ئې په بل هيڅ شي نه ور کوي.

همدا لامل دی چي رسول الله په مدينه کي له يهودو سره دميثاق المدينه په نوم د سولي او اتحاد تړون وکړ. د هجرت په شپږم کال ئې له مکيانو سره د حديبيې پر سيمه يو داسي تړون وکړ چي اصحاب ئې منلو ته چمتو نه وو، خو رسول الله هغه مادې ور سره ومنلې او لاسليک ئې ور کړ. خدای په قران کريم کي همدې کار ته ښکاره بريا وويله او د رسول الله په مشري (۲۷) غزاګانو ته ئې فتح مبين نه دي ويلي. راځئ دلته لږ د حديبيې پر سوله نور هم تم سو. هغه شرايط را

واخلو چې رسول الله صلی الله علیه وسلم له مکیانو سره سوله ور باندې وکړه:

ابن کثیر په خپل کتاب الفصول في السیرة کې هغه شرطونه یاد کړي چې رسول الله له مکیانو سره سوله پر وکړه. هغه دا دي: ۱ـ عمره به دا کال نه کوي، راتلونکی کال به عمرې ته راځي، توري به ئې په پوښو کې وي او په مکه کې به یوازې درې ورځې تېروي. ۲ـ د دوی ترمنځ به دا ترون لس کاله وي. ۳ـ قبایل اجازه لري چې خوښه ئې وي هغه لوری دې ونیسي، د هر فریق لوري ته که یوه قبیله ودرېده نو پر هغې برید عینا پر هغه فریق برید دی. ۴ـ او څلرم شرط دا وو چې که د مکیانو له لوري څوک مسلمان سو، مسلمانانو ته ئې پنا یووړه بیرته به دوی ته ور کول کېږي، خو له مسلمانانو څوک اسلام پر پرېږدي، مکیانو ته پنا یوسي، هغوی ئې مسلمانانو ته نه ور سپاري. (یاد کتاب، غزوه حدیبیه: ۱۸۵)

(یوه یادونه چې غواړم دلته ئې زموږ د مسلمانو مورخینو په اړه وکړم هغه داده، چې دوی په خپلو کتابونو کې دومره د جګړې فرهنګ ته متمایل دي چې د سولې کاروان ئې هم د غزا په نوم یاد کړی. دلته ئې باید د ټولو غزاګانو برخلاف د سولې سرلیک ایښی وای، مګر له بده مرغه چې زیاتره مورخینو او محدثینو دا کار نه دی کړی بلکې د غزا سرلیک یې ور کړی چې له سولې سره سمون نه لري.)

رسول الله په همدې شرایطو سوله ور سره وکړه، مګر د عمر فاروق په شمول زیاتره اصحاب حیران وه او تر خپلو منځو ئې احتجاج هم وکړ. عمر فاروق ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته احتجاج وکړ، هغه ورته وویل: هغه د الله رسول دی، د هغه له لوري مامور دی هغه ئې مرسته کوي او ضایع کوي ئې نه. بیا رسول الله ﷺ ته ورغی او هغه خبري ئې ورته وکړې چې ابوبکر رضی الله عنه ته ئې کړي وې، رسول الله ﷺ هماغه ځواب ور کړ چې ابوبکر ور کړی وو. تر دې وروسته په قران کریم کې د سورت الفتح بسته سورت نازل سو او د رسول الله دا سوله ئې د ټولو سوو جګړو برخلاف څرګنده بریا وګڼله او تر دې وروسته ئې نتایج په یوه کال کې را ښکاره هم سول.

زموږ په هیواد کې چې ۴۰ کاله جګړه روانه ده، ولس ئې تر بل هر ملت د سولې لپاره لېواله دئ. سوله نه یوازې زموږ غوښتنه ده بلکې د هر انسان بشري اړتیا او فطري غوښتنه هم ده. سوله ژوند دی او ژوند هر ژوی ته د خدای ور کړې ډالۍ ده، چې له هغه جل جلاله پرته ئې بل څوک ترې د اخیستلو حق نه لري. سوله مینه ده، مینه د انسان لپاره د خدای ځانګړې تحفه ده، چې که ئې هر څوک ترې د اخیستلو هڅه کوي نو د خدای ور کړې تحفه له انسانه وړي. په سوله کې کاري فرصتونه ډېرېږي، خلک له فقره خلاصېږي، رغونه زیاتېږي، د هیواد عامه تاسیسات جوړېږي، عدالت او انصاف ته خلک لاس رسی مومي او په ټوله کې هر انسان له خپلو انساني، قانوني او اسلامي حقوقو څخه برخمنېږي. سوله نن نه یوازې زموږ اړتیا ده، بلکې د شریعت او عقل تقاضا هم ده. د شریعت ښکاره نصوص مې وړاندې ذکر کړه او د هغو هدایاتو د عملي نمونو لپاره مې د رسول الله ﷺ د سولې یادونه هم وکړه. سوله ټولو نړۍ والو قوانینو، اخلاقي اصولو او شرعي ضوابطو ته په کتو زموږ مسلم حق دی او ترې غاړه غړونکي له ټولو بشري، الهي او اخلاقي قوانینو څخه مخالفت کوي.

په هیواد کې د یوې رښتني سولې او سلامتیا په هیله!

ډاکټر عبدالروف رفيقي

# د ګوره زامن

## په افغانستان کي په لومړي، دوهم او دريم افغان انګليس جنګونو کي د وژل شوو انګريزانو احوال

(څلورمه برخه)

ليفټيننټ فرينک ملز بارسلې:



Lieut.F. M. Barclay

Staff Corps

BENGAL N.I. (Rattray's Sikhs)

بنګال اين آئی سکهـ انفنټري

فرينک ملز بارسلي په ۱۸۵۵م کي د جنوبي هند په قيلون کي وزېږېدی، دی د مدراس آرمي د تقاعد شوي سرجن جنرال چارلس بارسلي شپږم زوی وو، بېخي پر تنکۍ ځوانۍ وو، چي په فروري ۱۸۷۵م کي ئې په برطانوي فوځ کي برخه واخيسته. ده په زړه کي د خپل روښانه سباوون ډېر ارمانونه درلوده، د همدې ارمانونو د پوره کولو لپاره ئې خپله نظامي وظيفه د رجمنټ (ورنئر آف ويلز خپله ټولۍ) څخه پيل کړه له هغه ځايه په هند کي و نظامي خدماتو ته وګمارل شو؛ چيري چي دی د بنګال د سټاپ لښکر سره يو ځای کړل شو او دلته بيا د خپلي ځيرکتيا له کبله وسياسي څانګي ته وسپارل شو.

په دغه شپو کي د برطانويانو له افغانانو سره جنګ وموښتی او د بارسلې و سکهـ رجمنټ ته د جنګ و لومړۍ ليکي ته د تلو امر وشو دغي ټولۍ په دغه جنګ کي په زړه پوري برخه واخيسته او په هغه کي د بارسلې ډېر مهم رول وو.

په ۱۷مارچ ۱۸۷۹م چي کله دی د کپتان لچ تر قوماندې لاندې وو، نابېره پر دوی د شينوارو له خوا بريد وشو کپتان لچ په دغه نښته کي معمولي غوندي ولګېدی، خو ليفټيننټ بارسلې بېخي بد ولګېدی، تر ښۍ وره ئې ګولۍ ووته، ګولۍ د ده سږی هم نيولي وو، دی د مېجر لچ په مرسته و لنډي کوتل ته راورسول شو خو د ژوند امېد يي نه وو په ۳۱مارچ ۱۸۷۹م تر دنيا تېر شو.

و يجر لچ ته په دغه جنګ کي د خپلو ملګرو په مېړانه د زغورلو او د زړه ورتوب د ښکاره کولو په نتيجه کي دملکه وکټوريه کراون ورکړل شو.

ليفټيننټ بارسلې ته برطانويانو په دا ټکو وياړ وروباخښه: (د ده په مړينه برطانوي فوځ له يوه غښتلي او لوړ عزمه عسکر څخه محروم شو او د بنګال سټاپ کرافس له يوه پياوړي مامور څخه محروم شو.). (The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p7

کپتان جون بيک:



Captain.JohnBeeke

(PUNJAB)BENGAL N.I. (PIONEERS)

جون بيک د جان بجک دوهم زوی وو، په ۲۴جولايي ۱۸۴۲م وزېږېدی، په ايډسکومب کي زدکړې وکړې او په ۱۸۶۰م کي په نظامي څواک کي ومنل شو، په ۱۸۶۷م کي په بمبۍ ميرين بټالين کي وټاکل شو. په ۱۸۶۷ – ۱۸۶۸ کي ئې د اباسينا په جنګ کي برخه واخېسته او په دغه جنګ کي ئې د کرنل ميري وتير څخه په رسمي او غير رسمي توګه وياړونه تر لاسه کړه. په۱۸۷۸م کي ئې د مالټا او سائيرس په پېښو کي برخه لرل. د۱۸۷۹ په مني کي په افغان انګليس جنګ کي دپنجاب په سپيشل سروسز کي وو او په جهلم کي د ټرانسپورټ مسول وو، چي په ۲۷اکتوبر ۱۸۷۹م وبا وواهه مړ شو. The Afghan (Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p16)

کپتان ويليم برومبي بارکر:



Captain.W. B. Barker

(P.W.O. Royal)HUSSARS

دی په ۲۴ مـی ۱۸۳۵م په ميسفيلډ کي وزېږېدی، په خپل کلي کي ئې زدکړې تر لاسه کړې،

په اوولس کلنۍ کي ئې په برطانوي فوځ کي وظيفه تر لاسه کړه، د خپل ځراکت له کبله ئې ډېر ژر - ژر نظامي برياوي لاس ته راوړې او په نومبر ۱۸۶۷م کې کمېشن تر لاسه کړ، په ۱۸۶۷م کي د خپل رجمنټ معاون وټاکل شو، دغه وظيفه ئې تر لسو کلونو پوري سرته ورسول، په مارچ ۱۸۷۱م کي ليفټيننټ جوړ شو په جولايي ۱۸۷۷م کي ده د خپل ۲۵ کلنۍ نظامي خدماتو ۹ کاله په هند کي بشپړ کړه او کپتانۍ ته راورسېدی.

کپتان بارکر اولسم هوسرز ته تبديل کړل شو، دی په هند کي په مارچ ۱۸۷۸م کي د خپل رجمنټ سره يوځای شو او د دغه رجمنټ د سکواډرن معاون قوماندان و ټاکل شو، په دغه شپو کي د دې رجمنټ قوماندان بارکلې وو. و دوی ته امر وشو چي دوی دي کوهاټ ته ولاړ شي او د جنرل رابرټس د ډوېژن سره دي د دښمن په ضد په مبارزه کي برخه واخلي دی د پېواړ د کوتل په نيولو کي هم موجود وو.

په ۷ جنوري ۱۸۷۹ د خوست دماتون په جنګ کي د غوره خدمت پر بنياد د برګيډئير جنرل هوګ جوغ له خوا و لوړو مقاماتو ته د ده خصوصي سفارښتنه وشوه ده په فروري ۱۸۷۸ کي واده وکړ، په فروري ۱۸۷۹م کي و ده ته و راولپنډۍ ته د راتلو او د خپلي ځانګي د کمانډ اخيستلو زيرمه وشوه په همدغه ورځ و دوی ته په جلال آباد کي د خپل رجمنټ و هيډ کوارټر ته د تلو زېرمه هم وشوه تر لږ وخته پوري ده دغه مشر توب پر غاړه درلودی، چي له ډېره تودښه لمبې وواهی د مي د مياشتي تر پايه بيرته خپل رجمنټ ته راغلی، په متې د ډکې تر کلا راتېر شوی وو، چې د ناروغۍ کيفيت ئې بيا خراب شو او ډېر له کاره ووتی تر اکتوبره يي بيرته لږ صحت سم شو نو جهلم ته يي ولېږی. دلته بيا په ۴ نومبر ډېر خراب شو او په يوه اونۍ کي يي د ننه د ننه په ۱۱ نوامبر ۱۸۷۹ ژوند له لاسه ور کړ. (The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p89)

سرجن مېجر رابرټ هنري بولټن:



**Surgeon Major R. H. Bolton**

**Army Medical Department**

دی د رابرټ سي بولټن دوهم زوی وو، په لومړي اکتوبر ۱۸۳۹م وزېږېدی، په رائل کالج آف سرجن او دآئرلينډ په کنګ اينډ قوين کالج آف فزيشن کي ئې زدکړي وکړې، په رائل ايلترونکي ئې خدمات تر سره کړه. په ستمبر ۱۸۶۳م کي په نظامي طبي څانګه کي په مدراس پريذيډنسي کي دمعاون سرجن په توګه وټاکل شو، د هند په بېلا بېلو برخو کي د خدماتو د تر سره کولو وروسته برما ته ولېږل شو او هلته ئې تر درو کلونو زيات وخت تېر کړ د ۱۸۶۹ په پيل کي بيرته انګلينډ ته ولاړی څو وخت پس ئې بيرته په دريم دراګون ګارډز کي وظيفه وټاکل شوه، تر درو کلونو له دغه رجمنټ سره وو، په دغه شپو کي سمدستي د

اشانتي جنګ وموښتې د ده ورجمنټ ته په دغه جنګ کې د برخي اخيستلو امر وشو، په دغه جنګ کې مېجر بولټن ډېر مهم رول ولوباوه، چي په نتيجه کې ئې و ده ته مډال هم ورکړل شو په دا مابين کې د جبرالټر جنګ ته ولېږل شو. په جنوري ۱۸۷۸م کي بيرته هند ته راوغوښتل شو او په نيچ او راجپوتانه کي مېډېکل آفيسر وو او و بنګال ريذيډنسي ته د نورو اوو مېډېکل آفيسرانو سره را تبدېل شو. په ستمبر ۱۸۷۹م کي په افغانستان کي جنګ ته راوغوښتل شو او سمدستي کندهار ته د رسېدو زيرمه ورته وشوه دا ډېر ګران او ستونزمن سفر وو، د بولان تر غرونو راواوښتې کندهار ته راورسېدی يو څو ورځي سمدستي پس په ۲۷ فروري ۱۸۸۰يي افغانانو تر هغه سينه چړې ورواېستې په کومه کې چي ئې انګريز زړه دړګېدی او دالته ئې ځای پر ځای کړی.(
(The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p23.

سرجن مېجر جارج اينسن:



Surgeon Major George.Atkinson. M. B.

Army Medical Department

نظامي طبي ځانګه:

دی په ۱۱اکتوبر ۱۸۴۰م په ايشلي پارک کي زېږېدلی وو، د جارج جي اينسن دوهم زوی وو، زدکړي ئې د سونس ټاون د رينالسي ايتلاون د ويټرز په ښوونځی کي تر سره کړي وې، نوري زدکړي ئې په ۱۸۵۹م کي د ډلبن په ټرنټي کالج کي تر سره کړې، په ۱۸۶۳م کي له ځورلسم څخه فارغ شو، يوکال وروسته په برطانوي فوځ کي ومنل شو، د ټريننګ پس هندوستان ته راولېږل شو او دلته ئې په ۵۴ رجمنټ کي ټاکنه وشوه، بيا له هغه ځايه دنولسم رجمنټ ولومړي بټالين ته تبديل شو، دلته ده د دهزارې په بريد کي برخه لرل او د قبائلو پر ضد د تور غره په جنګ کي ده ته مډال او clasp ورکړل شو.

له ۱۸۷۳م تر ۱۸۷۷م پوري آئرلېنډ ته د خصوصي خدماتو له پاره ولېږل شوله هغه پس بيرته هند ته راولېږل شو او په دغه ورځو کي دی په اپرېل ۱۸۷۶م کي د مېجر سرجن رتبې ته راپورته شو، ډاکتر اينسن دلته په بنګال کي وو، چي په۱۸۷۸م کي د افغانانو سره جنګ وموښتې، ده د G/4R دميډيکل چارج واخيستی د سندھ تر درياب راپوري وتی، کوتي ته راغلی له دې ځايه ئې د کندهار غاو پر ضد په اپريشن کي برخه لرل، دايو ډېر ستونزمن او درونډ کار وو، خو هغه بار چي د ده پر اوږو پروت وو ده په جوان مردي تر سره ورساوه، د احمد خېلو په جنګ۱۹ اپرېل ۱۸۸۰م کي د ده مهم رول وو، د ده قوماندان به ويل چي ده ډېر زيار وګالی. دشپې ډېر يخ وو د غزني پر لاري سکاروي وواهه د احمد خيلو د جنګ څو ورځي پس په ۲۵اپرېل ۱۸۸۰م وکابل ته څرمه مړ شو. برطانويان ئې په مرګ ډېر خوابدي وه، چي دی زموږ ډېر غښتلی مامور وو او د خپلي وظيفي سره ئې بې کچي مينه وه. ( The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p5-6.

لیفټیننټ ووډ:

لیفټیننټ ووډ په برطانوي پوځ کې ټرانسپورټ آفسر وو، چې وزیرستان ته را تبدیل شوی وو، په ۱۸۸۰ کي ئې د مۍ د میاشتي د لومړۍ او دوهمي نېټي منځنۍ شپه د سپرې په چوکۍ کي وه، چې دواړو د ملا ادېکړ د طالب او شاګرد وزیر خان داوړ په مشرۍ کي پر دغه چوکۍ یوه بله زوروره حمله وکړه په دغه حمله کي د دښمن ۳۰ تنه فوځیان مړه شوه په دغه مړو کي لیفټیننټ ووډ هم شامل وو. (وزیرستان: ۱۶۲)

لیفټیننټ هانري جیمز اوتهرم بار:



Lieut.H. J. O. Barr

(BERKSHIRE) REGIMENT

دوهم لیفټیننټ هانري جیمز اوتهرم بار د بمبۍ د آرمي د لیفټیننټ جنرل بار کشري زوی دی، چې په ۷جنوري ۱۸۶۱م په بریغټون کي وزیږېدی، ده خپلې زدکړې د ډاکتر ایچ بریکر تر سایه لاندې تر اوو کلونو پوري د پخواني ابیرډین په جمنازیم سکول کې تر سره کړې له دې ځایه ویسټون سپرمیري ته د ښاغلي هاپل زیرمي ته د اندېن سول سروسز زدکړو ته واستول شو، خو د فوځي ملازمت سره د مینې د لرلو له کبله وکپتان میسي ته د نظامي ازموینو د تیارۍ له پاره ورولېږل شو، په فروري ۱۸۷۹م کي تش د اولسو کلونو په عمر کي و لارډ کرین بروک ته د اعزازي کېډټ په توګه ورولېږل شو او هلته ئې هم په بریالیو لاس ته راوړنو سندونه تر لاسه کړه، په جنوري ۱۸۸۰م کي ئې په ۶۶رجمنټ کي ټاکنه وشوه او له برطانیې څه د هند ولور ته راولېږل شو، په دوې میاشتي کي د بمبۍ له لارې کراچي ته راورسېدی. سمدستي امر ورته وشو، چې په کندهار کي دې د رجمنټ و هېډ کوارټر ته ځان ور ورسوي، د مۍ ۱۸۸۰م تر پایه ئې د اووم فیسلیرز د میجر ویندالور تر قوماندې لاندې دلته ځان راورساوی، دلته ئې بیا د خپل ځراکت له کبله ډېر ژر ځای ونیوی.

په ۴جولایي ۱۸۸۰م اوتهرم بار د برطانوي ځواک د هغه برګید د رجمنټ سره چې د جنرال بروس تر قوماندې لاندې وو د ایوب خان د مخ نیوي لپاره د کندهار د ګرشک پر لوري رهي شو د امزل د شپې له خوا وو، دې تنکي ځوان هم خپله دلاوري پکې ښکاره کړه، په جولایي ۱۸۸۰م ګرشک ته ورسېده فقط درې ورځي پس په ۱۴جولایي په میوند کي په داسي حال کي چې د ماځیګر څلور بجې وې د پښتنو غازیانو له خوا د خپلو نورو سلهاوو ملګرو سره ووژل شو. (The Afghan Campaigns of 1878- 1880 Vol.2 p10-11)

سردارولي پښتون زوی

# کوټه؛ د کندهار هېره فرهنگي حوزه

(دیارلسمه برخه)

د میوند له تاریخي ماتي وروسته، چې د کندهار د برتانوي دولت پوري د مبښلولو تمه وشکېده، د افغانستان برتانوي قومندانانو د دولت وزیر وایسرای ته خبر ورکړ، چې د پښین او سیوی د بیرته ورکړي موضوع نور نو هیڅ نه سي مطرح کېدای او [اریپن] ته واک ورکړل سو، چې د کندهار د راتلونکي په هکله د امیر سره خبري اتري وسي او که چیري دا خبري ناکامه سي نو بیا دي د افغاني مشرانو یوه جرگه راوبلل سي، چې هغوی په خپله پرېکړه وکړي. خو د یادوني وړ ټکی دا دئ، چې د لندن کابینې پرېکړه کړې وه چې د کندهار ځخه د برتانوي پوځ تر وتني وروسته به د مسلطو شرایطو په پاملرني سره سیوی او پښین هم بیرته افغانستان ته وسپارل سي او دا اوسنی راگرځونه به لنډمهاله وي. خو له بده مرغه تر دې تخلیې وروسته که څه هم چې په سیمه کي هیڅ کوم بهرني خطر نه وو، مگر بیا هم دا سیمي په ۱۸۸۷ع کال کي رسماً او دایماً له افغانستانه بېلي کړای سوې، لنډه دا چې کندهار تر ۸۸۸ ورځي بېلتانه وروسته د میوند د تاریخي سوبي په پایله کي بیرته د خپل مورني هیواد افغانستان تودې غېږي ته ولوېد او د انگرېز–افغان دوهمه جگړه په دې وتنه سره پای ته ورسېده[1].

انگرېزي دولت ددې سیمو تر لاسه کېدو وروسته د زاړه استعماري تخنیک[ بېل ئې کړه تفرقه واچوه او حکومت پر وکړه (Divide and Rule)] پر بنسټ کله د زور او کله د تطمیع، مرستو، دسیسو او فشارو په مټ امیر بند پر بند وتاړه او په ۱۸۹۳ع کال د نومبر په ۱۲مه د هند د خارجي سکرټر [ډیورند[2]] د هند او

---

[1] د افغانستان ځخه د کندهار ۸۸۸ ورځنی بېلتون، نثار احمد واصفي، کندهار مجله ۲۰۰۰ع کال اگست

[2] سر مارټمر ډیورنډ د سرهنري مارین ډیورند زوی وو چي د ماشومتوب یوه برخه ئې په بهوپال او د هند نورو برخه کي تیره سوې، پلار ئې هم په بریتانوي هند کي دانگریزی کمپنۍ له مامورینو ځخه وو چي فارسي ئې رواني خبري کولې، زوی ئې هم په دې خاطر چي دپلار نوم ئې دلته ژوندی پاته سي د لوی افغانستان له چارو سره ځانگړې لیوالتیا پیداکړه او فارسی ژبه ئې زده کړه او رواني خبري ئې په کولې. ان دومره چي عبدالرحمان خان ئې دهغې له امله ورجذب کړاو د ډیورند د کرښې دلاسلیک یولامل همدا وو چي ډیورند (دده ملگری) په فارسي ژبه هم ډیر ښه پوهیږي، ډیورنډ له ۱۸۷۳ع کال ځخه وروسته له بریتانوي هندي واکمنۍ سره په کار پیل وکړ، دده له لویو کارنامه ځخه یوه هم دغه [ډیورنډلین پروژه] وه چي نږدې لس کاله ئې دهغې په اړوند کار وکړ ځو چي په پای کي ئې دغه دزهرو غړپ پر امیرعبدالرحمان خان د

افغانستان د سرحداتو د ټاکلو لپاره مقرر کړ چې له پامیره او بدخشانه بیا تر کاکړو او چاغي پورې ډیورنډ لیکه وټاکي او په امیر ئې خپل پخوانی شوم تړون [ډیورنډ تړون] ومانه. ددې تړون پنځمه ماده د کندهار د سیمو په اړه لیکي:

"د پولي کرښه به د کوړک د غره پر سر را پیل سي چې شاکوتل[۳] ته نژدې پروت دئ، کرښه به د مرغې او چمن په ها خوا د افغان تهانې چې خلګ ئې لښکر ډند (لښکر تهانه؟) بولي، په سیمه کي ټاکل کېږي، کرښه به د اورګاډي د سټېشن په ها خوا د بولدک له غونډۍ چې خلګ ئې [میان بولدک] بولي، ځخه تېرېږي او د

دغه ځاي ځخه د جنوب خوا ته به داسي کږېږي چې بیر تـه د کـوړک د غرونـو سلسلې تـه ورننـوزي. د ګوانښـې[Gowashi]سـیمه بـه برتانیـا تـه پـاتېږي او د ښوراوک او ګوانښې تر مابینځ سړک به په افغانستان کي پاته سي. د بریتانیې حکومت ژمنه کوي چې له کرښې ها خوا به په نیم میل واټن کي مداخله نه کوي...تر ځو چې د [نوي چمن(۲)] خبره ده، هلته د برتانیې د نوی قشلې/چاونۍ په اړه عالیجناب امیر له خپل اعتراض ځخه لاس اخلي او برتانیا حکومت ته د هغې مځکي حقوق پرېږدي چې سورکۍ تلیرۍ(Sorkai Taigai) [عام خلګ ئې سرکۍ لېرۍ وایي]په او بو کي ئې پخپلو پیسو اخیستي وه، افغانستان د امیرلخوا بـه د شېرو او بو[Sharo aba]لاندي سیمي د برتانیا پر حکومت پلورلي بلل کېږي(۱)"

امیر خپلو خاطراتو [تاج التورایخ ]کي لیکي:

"د چمـن لـور تـه د هندوسـتاني چـارواکو تـل لاسوهنه کوله او هغه ځه چې زما د هېښتیا لامل وه دا دي چې له یوې خوا د هندوستان دولت ویل چې موږ دغو سیمو ته اړتیا نه لرو چي د افغانستان اړخ ته پرتې دي، ځکه موږ غواړو افغانستان یو خپلواک او ځواکمن هیواد وي او له بلې خوا ئې خوجک پر غره تونل وواهه او خپلـه د اوسپني کرښـه ئې زمـوږ هیـواد تـه داسـي ننـه ایستله، لکه چې په لږمون کي مو چاره ووهي. داسي تا ویل مـا ویـل هـم خپرېدې چې انګلیس دولت غواړي

---

همدغي خوږې ژبي( فارسي ) په خوږو کي پرسر واړاوه اوله دغي تاریخی پروژې وروسته ئې اوږده دنده په دغه سیمه کي پای ته ورسېده، انګریزانو ونازاوه ایران ته ئې دخپل استازي په توګه ولیږه چې هلته له ۱۸۹۴ع کال ځخه تر ۱۹۰۰ع کال پوري پاتېه سو، بیا اسپانیا کي سفیراو له ۱۹۰۳–۱۹۰۶ع کال پوري امریکا کي سفیر وو. کله چې له امریکا راستون سو، بیا ئې د یولړآثارو په لیکلو لاس پوري کړ، چې په هغو کي ( دخپل پلارژوند لیک، یو منی په لویدیځ فارس کي او دنادرشاه په نامه تاریخی ناول ) دپاملرنې وړ سول.

[۳] چمن پخواد کوړک غره په بېخ کي یو ووړ بازار وو. خو دا چې چمن ستراتیژیک ارزښت لاره، دغه سیمه انګرېزانو د رېلوې سټېشن په نامه له امیر وغوښته. دلته چې د نوي چمن کېږي هغه چمن (اوسنی چمن)له کوړک غره ځخه پنځه کلومیټره د افغانستان خوا ته دئ. د پلار د خولې مي چي په زاړه چمن ( د کوړک غره په بېخ کي / داوسني چمن لمرخاته ته ) کي ئې د اسانو تبیلې ( غوجلي )لیدلي وې، ځیني سپین ږیري وایي د کوړک غره په بېخ کي خورا اوږد چمن هم وو چې انګرېزانو به خپل اسونه پکښې تړل، یوې ټولۍ عسکرو به بیا ټوله ورځ ددې اسانو ځار کاوه، او دوی (انګرېزان ) به په کوړک کي په خپلو پوستو کي تیارسی ناست وه. ځیني ځېړونکي د چمن نوم همدې چمن ته منسوبوي. د امیر عبدالرحمن خان له خبرو ځخه داسي ښکاري چې اصلا د نوي چمن په ګډون نوري سیمي هم لومړنیو خبرو کي نه وې یادي سوي، امیر ته د لاسلیک کولو په بدل کي له کاله د ۱۲ لکو هندۍ روپیو په بغل کي د ۱۸۸۳ع ځخه تر ۱۸۹۵ع پـوری ۸۰ سـپک توپونـه، ۱۷۳۴۰ د تـوپ ګـولۍ، ۳۳۳۰۲ توپک، ۳۲۰۰ کارابینه(د هغه وخت اعلي توپک) ۲۱ میلیونه د توپکو ګولۍ ورکول سوې او همدارنګه ئې د وسلو رانیولو اجازه هم وموندله.

[٤] علامه عبدالحی حبیبي ئې اسرکاري تیلیري الیکي، وګورئ: تاریخ تجزیه شاهنشاهي افغان.

[٦] ډیورنډ تړون، پښتو کوونکی اروانښاد پوهاند محمدحسن کاکړ، ۱۹۹۳ع کال

چي خپله اوسپنيزه کرښه تر کندهار راورسوي؛ که زما خوښه وي او يا نه! دا خبر په هر ځای کي خپور وو او د پارلمان په غونډه کي هم خبري پر وسوې، په دې اړه زما استازو افغانستان ته د رالېږل سوو ورځپاڼو له احوالو څخه ژر تر ژره خبرولم... په هغه نقشه کي چي واکمن ماته رالېږلې، د وزيرو سيمه، نوی چمن او د هغه ځای د اوسپني لاره استانسيه، چغايي، بلندخېل، مومند، اسمار چترال او ټولي هغه سيمي چي په منځ کي پرتې دي، د هندوستان برخي ټاکلي وې، واکمن ته مي يو اوږد ليک وکيښ او خپله اندېښنه مي په ډاګه کړه.".

په دې توګه د کندهار د سيمو کار له ۱۸۴۹ع ميانوالی)، فاټا او برتش بلوچستان غونډي په غير حقيقي او پښتو دښمنه نومونو ونومولې او په سيمه کي انګرېز ۱۷ ميليونه پنجابيان، دوه ميليونه سنديان او ګڼي پښتني او بلوڅي سيمي په ځان پسي د نورو مريانو غونډي وتړلې، لنډه دا چي نيمي افغاني سيمي پرلپسې پرله پسې له لاسه ووتې. انګرېزانو ۱۸۱۹ع کال کي کشمير ولايت، ۱۸۲۱ع کال ډېره غازي خان د پنجاب په دولت پوري وتړل، ۱۸۲۱ع کال کي ئې ډېره اسماعيل خان، ۱۸۲۳ع کال کي پېښور سيکانو ونيول، همدارنګه ۱۸۴۳ع کال د سند ولايت او په ۱۸۵۴–۱۸۷۶ع کال بلوڅستان انګرېز تر تتی لاندي کړل.



د ډيورنډ کرښي پر ټاکلو ځايونو د سرحدي کمېسيون لخوا د نخښو لګول، 1895مارچ ;THE GRAPIHIC,87

څخه پيل او په ۱۸۹۳ع کال پای ته ورسېد، او په ځانګړي ډول ۱۸۰۱ع –۱۸۹۳ع کاله پوري انګرېزانو له چتراله تر بولانه دغه ټوله افغان خاوره ونيوله او بيا ئې د دغو سيمو د افغان پېژندني، کلتور او جغرافيې د ګډوډۍ لپاره نه يوازي دغه سيمي يو له بله جلا کړې، بلکي د شمال لوېديځي سرحدي صوبې (اټک، ددې ټولو سيمو تر وېشلو وروسته انګرېز ناځاپه د کوټي او چمن تر ميان د اسيا پر مشهور اورګاډي

[۷] تاج التواريخ، امير عبدالرحمن خان (ژباړن زاهد مشوانی)(پېښور ، دانش خپرندويه ټولنه ۲۰۰۱ع کال)

تونل [کوږک تونل [کار پیل کړ[8] او هم ئې لیکه د چمن د کلا څخه پینځه کلومیټر ورها خوا وغځول، روسانو ددې پرمختک په وړاندې د افغانستان په شمال کې بالمثله سیمې (پنجده او مروه) لاندې کړې.

امیر عبد الرحمن خان دواړو زبرځواکونو اروس او انګریز [د مخنیوي لپاره پخپله خاوره کې د اورګاډي او د ټیلیګراف په جوړولو بندیز ولګاوه؛ هغه وخت ده وویل: "په افغانستان کې به هغه وخت رېل راځي چې افغانان ئې پخپله د جوړولو جوګه سي، تر څو چې په افغانستان کې دومره وسله نه وي چې د یرغل کوونکو مخه ونیسي، د دې خاوري په لروبر کې د اورګاډو جوړول یوه اشتباه ده". هغه افغانانو ته اجازه ورنکړه چې د چمن په اورګاډي کې سفر وکړي او وویل: "دا پاټلۍ لکه د یوې چړې په ډول زما په زړه کې ښخه ده"[9].

د امیر په امر د افغان پوځ لپاره یوه پانه هم خپره سوه چې د جنګ پر وخت د اورګاډي پاټلۍ به څنګه تباه کوي، او هم ئې یو کنډک عسکر په کندهار کې ددې د پاره وروزل چې د جنګ په وخت کې څنګه د رېل سړک د کار و باسي[10].

دې بایکاټ له اورګاډي نه نظر کې نیولې ګټه کمه کړه او انګریزان د امیر دې دریځ تاوجن کړه، ان څو ځلې ئې وغوښتل چې امیر خپله پر بکړه بیرته واخلي خو امیر پوهېده چې د رېلوې اصلي موخه هغو سیمو ته ننوتل وو چې پر هغو د دواړو دولتونو لانجې وې[11]. نور بیا...

---

[8] د کوږک تونل کار په ۱۸۸۸ع کال داپریل په ۱۴ پیل کړ چې د درو کالو پرلپسې کار او زحمت په پایله کې په ۱۸۹۱ع کال کې د جنرال سر تامسن په څارنه پوره. او په مارچ میاشت کې د هند د سپه سالار له خوا په خوراجم وجوش پرانیستل سو، لګښت ئې شپږ میلیونه هندي روپۍ وو. ددې کار د ماموریت له پاره له انګلستان، هند او بنګال څخه ایماندار، خپلواک او پوه انجیران را وغوښتل سول، چې په څنګ کې ئې نورو قومونو هم کار کاوه لکه په هند کې بېلابېل زندانیان، هزاره، مغول، فارسي ژبي، پنجابیان، سیکان، مکرانیان، بنګالیان او کم شمېر عربي ویونکي... اټکل ۸۰۰ کاریګرو ژوند د لاسه ورکړ، او ویل کېږي چې پنځه ویشت زره خرو، فیلانو او اوښانو کار پکښې کړی دئ. کوږک تونل هغه وخت کې د هند لومړي او د نړۍ څلورم لوی تونل وو، دغه تونل اوس د نړۍ اتم اوږد تونل دی، ددې تونل اوږدوالی څلور کیلومتره دئ، وریسې (مخ پر لوېدیځ) شپږ تونله نور دي. د هر تونل پر سر د بشپړېدو لوحې په اساسي ډول دننه په خښتو کې لیکل سوي دي، انګریز غوښتل چې د اورګاډي دغه پټلۍ تر کندهاره پورې ورسوي، ځکه انګریزانو غوښتل له روسانو مخکې سیمې ته په اقتصادي او ټولنیزو کړو وړو کې جدي بدلون ورکړي، خاص الخاص صنعتي انکشاف او هلته د کار مارکیټ ته. افغانستان ته د روسانو د راتګ (۱۹۷۹ - ۱۹۸۹ع) پر مهال پاکستاني فوځیانو څو میاشتي دا مورچې سنبال کړې، څو وروسته چې کله د غره په سر کې رادار او نوري تخنیکي آلې ولګول سوې، نو مورچې هم له عسکرو څخه خالي کړل سوې، د کوږک غره څوکې د سمندر له کچې څخه (۹۰۰۰) فوټه لوړوالی لري.

[9] تاج التواریخ، امیر عبدالرحمن خان (ژباړن زاهد مشواني)(پېښور، دانش خپرندویه ټولنه ۲۰۰۱ع کال)

[10] خو څو وخت وروسته (۱۸۹۴ع) کې امیر عبدالرحمن خان د کندهار د نامتو تجار نعیم خان توخي ورور دوست محمد خان په کراچۍ کې په لومړي ځل د افغانستان د امیر تجارتي اتشه وټاکه، دوی دوه د افغانستان د نامتو تجار عبیدالله توخي زامن وه چې د امیر د خوا ۱۸ فقرې هدایت نامه ورکړل سوې وه، همدار نګه نعیم خان د چمن تر څنګ په ګلستان کې یوه پراخه منډۍ جوړه کړه چې تر ۱۹۴۰ع پورې لا د افغانستان تازه مېوې د رېل د لارې د هند ټولو سیمو ته تللې. د افغانستان پېښلیک.

[11] دیورنډ د خپلو خاطراتو کتاب کې لیکي: "د هند برتانوي هیأت دننده لرله چې امیر عبدالرحمن خان دې ته تشویق کړي چې خپل عسکر د [روشان [او [شغنان [(د بخارا یوه برخه چې ۱۸۷۳ع کال کې روسانو ته ورکول سوې وه) وباسي. او هم دې هغه خوابدې لیرې کړي چې امیر د کوږک غره د تونل او نوي چمن پر جوړولو ښکاره کړې وه" د افغانستان سقوط، عبدالصمد غوث [د ډاکټر شېرزمان ژباړه [(پېښور: دانش خپرندویه ټولنه ۱۹۹۹ع کال)

صديق الله عظيمي

# خرقه شریفه د تاریخ په اوږدو کي

## (د خرقې شریفي اړوند د افغانستان د واکمنانو فرمانونه)

(۴)

د ده د حرکت څخه څه موده وروسته هغه ځای چي احمدشاه بابا د ښې هوا له کبله د خرقې شریفي لپاره تعین کړی وو کار پای ته ورسېدئ، چي په هغه احاطه کښې پراخه مسجد د اوبو حوض (چي په پخه خښته، گچو او ډېرو سره) د هغه وخت مشهوره معمارانو، چي د کندهار ښار زیات کارونه به احمدشاه بابا دوی ته ورسپارل (استاد یاسین، پاینده محمد او عبدالرحمن) وه، چي د گنبدي کار هم د دغو استادانو په مرسته په (۱۱۹۰هـق) کال کي تکمیل سو. علماوو او مشائخو په ډېر عزت، خیراتو، نذرونو، تکبیرونو او پرحضرت محمد صل الله علیه وسلم د درود په ویلوسره د هغه پخواني مسجد څخه چي د وزیرشاه ولي خان وکورته نژدې وو نوي ځای ته چي کار ئې د احمدشاه بابا په وخت کي شروع سوی او د امپراتور تیمورشاه په وخت کې کار بشپړ سوی وو انتقال سوه. وروسته ترانتقال امپراتور تیمورشاه د خرقې شریفي د متولیانو لپاره فرمان ولیکئ، چي د خرقې شریفي دمسجد په حجره کي به پنځه نفره عالمان او پنځه نفره متولیان اوسېږي، چي نه باید خرقه شریفه د کندهار څخه وبل ځاي ته یووړل سي او هم ئې د دوی لپاره روزانه پخه ډوډۍ مقرره کړه چي دغه کارکلونه ـ کلونه دوام درلود.

همدارنگه امپراتور تیمورشاه په کابل کي د علي آباد د غره په لمن کي هغه ځای، چي خرقه شریفه پکښې اینښوول سوې وه د نژدې څخه ولیدی. هغه ځای ئې د زیارت (شاه مردان) په نامه ونوموی. داچي هغه ځای دښت وو نو تیمورشاه دراني هم امر وکړ چي هغه ځای چي خرقه شریفه به پر پرته وه هغه ځای ته ئې نژدې یو څاه وکیندئ، چي خلگ د هغه څخه د اوبو د څښلو او اودس تازه کولو کار واخلي او هم ئې د هغه ځای پر شاه وخوا د توت درختې کښېنولې، مگر اوس ټول خلگ په دې باور دي چي دلته امیر المؤمنین حضرت علي کرم الله وجهه قدم اینښی دئ اوهغه ډېره چي د خلکو د زیاتوالي له کبله د دې لپاره چي خلگ دا خرقه مبارکه دلیري څخه ووینې پر اینښوول کېدل پر هغه ډېره ئې د ذوالفقار نوم کښېښووی.

امپراتور تیمور شاه دا ټول کارونه د هغه ښه نیت څخه وکړل، چي په (۱۱۸۲هـق) کال کي د ده مرحوم پلار احمدشاه بابا د کابل د پخواني ښار څخه لیري دغه خرقه مبارکه د څه مودې لپاره اینښې وه. (وکیلي، ص، ۵۸۸-۵۸۹)

دشاه زمان فرمان:

الحاج ملا عبدالحق اخندزاده چي په قوم الکوزی وو په (۱۱۸۳ هـق) کال دمحرم الحرام پر ۲۶ نېټه په

کندهارکي د احمدشاه بابا په فرمان دخرقې شریفي متولي مقرر سوی وو، خو د شاه زمان په دوره (۱۲۱۴هـ ق) کال وفات سو، نو شازمان د ملا عبدالحق اخندزاده پر ځای د هغه زوی الحاج ملا حفیظ الله اخندزاده د یو خاص فرمان له مخي دخرقې مبارکي متولي مقرر کړ، چي دفرمان متن ئې په لاندي ډول لیکل سوی دئ:

لوي الله تعالي ته پناه ور ورم، چي پدې وخت کي حاجي الحرمین ملا حفیظ الله ولد حاجي عبدالحق د خرقې شریفي متولي دئ، مخکي له ده څخه د خرقې شریفي متولي حاجي عبدالحق چي په احمدشاهي اشرف البلاد ښار کي مقرر سوي وو وفات سو، نو پسله درې میاشتو څخه موږ اوس د هغه زوی د متولي په رتبه د خرقې مبارکي د ساتني لپاره وټاکه او د هغه څه چي صلاحیت، عزت، محافظت او د ټولو مراسمو په اداء کولو او کوښښ کولو کي به یوه د قیقه هم د خپل پلار دکړنو څخه سترګي نه پټوي او په خپل ښه نیت سره به د هغه مبارکي خرقې ساتنه کوي اوخرقه مبارکه، چي په صندوق کي پرته ده په هم هغه شکل به پرته وي او د صندوق سر، چي څه رنګه قلف دئ په هم هغه شان به قلف وي او بېله امر څخه د نواب همایون او زما دبل چاپه امر به د صندوق سر نه خلاصېږي او هغه خلګ چي د خرقې شریفي زیارت ته راځي هغه به د صندوق زیارت کوي.

دغه فرمان په کال (۱۲۱۴هـق) کي ولیکل سو او د خرقې شریفي متولي الحاج ملا حفیظ الله اخندزاده ته وسپارل سو. (وکیلي: صص، ۷۸-۷۹)

**د خرقې شریفي د متولیانو معاش:**

د راني امپراتور زمان شاه په کال (۱۲۱۵هـق) د ربیع الثاني په میاشت کي د خرقې شریفي د متولي (الحاج حفیظ الله) لپاره هر کال شل تومانه نقد معاش منظور کړ، چي د کندهار د خزانې د (۴۱) مدرک مالیات څخه ئې واخلي. دغه فرمان د هغه حقیقت شاهد دئ، چي د کندهار د(۴۱) مدرک مالیات د فیض الله خان پوپلزي پر غاړه وو. د فرمان لیکل سوی متن په دې ډول دئ:

«لوي خداي لره پناه وړم د هغه خیر د دعاء په نتیجه کي وطرفته د هغه چي برکتناک، شرفناک خاوند دلوړي مرتبې دئ. د شپږو میاشتو له شروع څخه تر دغي مبارکي سنې پوري هر کال شل تومانه مبلغ د فضیلت له وجي د حرمین الشریفین لپاره د حاجي حفیظ الله د فضیلت په خاطر مقرر کړه سوه، چي هر کال ئې د احمدشاهي ښار دمالیاتو د (۴۱) مدرک څخه واخلي او هغه څه ته چي صرف موږ حاجات لرو پرله پسې دعاګاني دي او هغه دولت او دارائي چي خداي راکړې ده پرهغه برقراره واوسېږو، هغه کارونه او حکمونه د مبارک ښار د اوس او راتلونکي لپاره کافي دي، د یاد سوي تاریخ څخه به هر کال شل تومانه مبلغ د (۴۱) مدرک مالیاتو څخه اخیستل کیږي.»

دغه فرمان په (۱۲۱۵ هـ ق) کال د دولتي مسئولینو په مخ کي ولیکل سو او شاهدانو ئې د ورقي پرشا باندي لاسلیک وکړ چي وروسته په ټولو دولتي ادارو کي ثبت سو.

**یادونه:** زیاتي هڅي مي وکړې خو په دې ونه توانېدم، چي د شاه زمان د دغه دوو فرمانو لیکل سوې بڼه د عکس په شکل تر لاسه کړم، ولي پورته متن د افغانستان د معاصر تاریخ په اکثره کتابو کي په تشریحي شکل په بڼه ډول تر لاسه کېدلای سي.

د شامحمود فرمان:

شاه محمود چي د تیمورشاه زوی او د زمان شاه ورور وو، د زمان شاه څخه وروسته ئې واک په لاس کي واخیست، که څه هم شاه محمود په خپله دوره کي د

مبارکې خرقې لپاره کوم کار ونه کړ، خو بیائې هم دیو فرمان لـه لارې داوښوده چې خرقـه مبارکـه پـه دغـه کورنۍ پورې اړه لري. فرمان ئې په لاندې ډول وو:

لوی الله لـره پناه وروړم، هغـه چې دکمالاتو او فضیلت پناه یـې غوښتې ده، هغـه ملاخدابخش، مـلا باشـي او ملانصرالله امین، د احمدشاهي محکمې ملا الیاس، ملا پیرمحمد کاکړ، ملا دوست محمـد ترین او نورمشران اوعلمـاء چې داحمدشـاهي ښـار پـه شاهانه لطف سره بریالي سوي دي.

پوه سي چې په دغه ولایت کي فضیلت او کمالاتو ته تسلیم سوي حاجي حفیظ الله دراني الکوزئي د خرقې مبارکي متولي دئ، د هغه وشرف ته ئې وړاندي کوو او همدارنگه د دوی د هغو ټولو نژدیکانو سره په اتفاق د خرقې شریفي د خیرات په اړوند خبري کوو، چې دوي یې دعوه مخکي هم کړې وه او اوس یې هم کړې ده. پدې اړوند دسلطان امر دادئ، چې هر یو د خپلي مقررۍ اجره لري او هر کال به همداسي کیږي او دغه خیرات د احمدشاهي ویالې څخه لاس ته راغلی دئ، هر څوک چې د فقیرانو او مسکینانو څخه حاضر وه حق د هغوی دئ، پر دغه خیرات د هیڅ چا کار نسته او د حاجي حفیظ الله سره ئې پدې اړه دخل او رجوع نه ده کړې په هغه مخکنۍ طریقه چې هغه مقرر سوي وو منظور ئې کړي. دانویشته ئې په ۱۲۱۶ کال د ربیع الاول په میاشت کي وکړه او دغه فرمان ئې لاسلیک کړی دئ.

یادونه: له بده مرغه له ډېرو هڅو سره ـ سره په دې ونه توانېدم چې د هغه وخت لیکل سوې اصلي نسخه د عکس په بڼه ترلاسه کړم.

دامیر دوست محمد خان فرمان:

کله چي امیردوست محمد خان د پاچاهۍ پرتخت کښیناست د هیواد په داخلي چارو کي ئې هم بدلونونه راوستل چي په دې جریان کي دنورو ولایتونو تر څنگ ئې دکندهار ولایت ته هم پاملرنه وکړه، ترڅو کندهار هم د پایتخت سره وتړي ځکه چي دکندهار اوضاع ډېره کړ کېچنه وه، چي د سردار کنهدل خان او سردار مهردل خان ترمړینې وروسته د دې ولایت د (۴۱) کوچنیو پاچاهانو ترمنځ د واک د ترلاسه کولو لپاره جنجالونه رامنځته سول، دغو سردارانو چي د کندهار ولایت څخه ترگریشک، زمینداور او فراه تر پولو پوري ښې مځکي، اداري او اختیارات په لاس کي درلودل په خپلو منځو کي په جنگونو اخته سول، ځکه چي د دوي ټولو کورونه په ښارکي دننه وه، هر یوه به د بام څخه ډزي کولې او بې گناه خلگ به وژل کېدل، نو ځکه خلگ او خپله دوی له دغو وینو تویولو څخه په تنگ سوي وه.

سردار سلطان احمد خان مجاهد چي د امیر دوست محمد خان په وینا له کابل څخه ایستل سوی وو دا وخت ئې په کندهار کي ژوند کوی، هغه او نورو سردارانو چي پلار او زوی، وررور او د کاکا زوی ټول سره په خپلو کي دوستان وه مشوره وکړه، چي د دې کړکیچ د پای ته رسېدو لپاره دي د امیر دوست محمد خان وینا ومنل سي. سردارانو ومنل او د امیر دوست محمد خان څخه ئې د راتگ غوښتنه وکړه، امیر دوست محمد خان هم له یوشمیر زامنو او عسکرو سره کندهار ته راغلی او له ښار څخه د باندي ئې اوسېدل غوره کړل، د دوی ترمنځ خبري اتري ډېري اوږدې سوې نو امیر یوه ورځ د خرقې شریفي د زیارت په نوم ښارته ننوتی، د زیارت څخه ښارته ونه وتی، خو عسکرو ئې د ښار ټول امنیت په لاس کي واخیست، امیر هم د څه وخت تېرېدو وروسته د کندهار حکومت خپل ولیعهد (سردار غلام حیدر خان) ته وسپاری.

په دې توگه دکندهار ولایت د مرکز سره وتړل سو او د کندهار د سردارانو د لاسه ووتي، مگر امیر دوست

محمد خان وويل: چي دکندهار ولايت کلني ماليات دي تر نظامي لګښتونو وروسته يو ميليون او شپږسوه زره روپۍ پوري د معاش په نوم دغو سردارانو او زمينداړانو ته ورکړه سي او هم ئې د خرقې شريفې لپاره د درو کسو په اندازه کلني معاش منظور کړ، چي په دې جريان کي د کندهار له سردارانو څخه يوازي درې کسانو لکه (شيرعلي خان، سلطان علي خان او محمد خان) د امير دوست محمد خان معاش ونه مانه، ايران ته ولاړل، چي وروسته د دغه معاش اندازه هم خرقې شريفې ته ورکړل سوه. (غبار: ص، ۷۱۵)

د امير شېرعلي خان فرمان:

امير دوست محمد خان د (۱۸۶۳م) کال د جون په مياشت په هرات ولايت کي د خپل ژوند سره مخه ښه وکړه د هغه تر مړيني وروسته د هغه زامنو دواک د ترلاسه کولو لپاره جګړې کولې، چي په پای کي امير شيرعلي خان واک ته ورسېدی، اميرشېرعلي خان واک ته تر رسېدو وروسته د کندهار د تصفيې لپاره کندهار ته ولاړی، داچي په کندهارکي د ده بل ورور محمد امين خان پر قدرت وو او د مرکز سره ئې خپله رابطه له منځه وړې وه د شېرعلي خان مشري ئې نه منله، نو په دې اساس امير شېرعلي خان هم په کال (۱۸۶۴م) د خپل ورور محمد امين خان د ايلولو او دکندهار دنيولو لپاره د خپل زيات او مجهز فوج سره د کابل څخه د کندهار پر لور روان سو، درې ورځي په غزني کي پاته سو او چي کله د قلات دقلعه څخه تېر سو کجباز ئې خپله قرارګاه وټاکله، محمدامين خان هم د خپل ملکي او نظامي فوج سره د خپل ورور د مقابلې لپاره چي نن ئې دښمن ګرځېدلی وو راووتی، سره له دې چي ډېر خلک ئې د سولي لپاره په منځ کي وګرځېدل، خو هيڅ نتيجه ئې ورنکړه ځکه د اقتدار لېوال پر خپلو اعصابو دونده کنټرول نه لري چي عواطف حمايه او صله رحمي وپالي.

جنګ شروع سو تقريبا دې خونړي جنګ اووه ورځي دوام وکړ، چي په دې جنګ کي په زرګونه ځوانان او د دې خاوري بچيان د دوو اميرانو د شخصي تربګنۍ ښکار سول، تر دې پوري چي د جنګ په اتمه ورځ سردارمحمد امين خان دکابليانو له خوا او سردار علي محمد خان چي د امير شيرعلي خان زوي وو د کندهاريانو له خوا د جنګ په تاوده ډګر کي ساه ورکړه په عمومي توګه (۸۰۰۰) نفره په دې جنګ کي د طرفينو له خوا ووژل سوه چي اکثره يې کندهاريان وه. (غبار: ص، ۹۱۷)

کله چي امير د خپل زوی او ورور د مرګ واورېده امير خپل اعصاب د لاسه ورکړه، خلاصه دا چي امير دواړي جنازې تکفين کړې يوه ئې کندهار او بله ئې کابل ته وليږل، امير هم پدې جريان کي کندهار ته ولاړ، سردار محمد امين خان چي د کندهار حکمران وو او خرقې شريفې ته په ډېر عزت سره قائل وو. ده په ژوند کي داوصيت کړي وو، که هر وخت که زه مړ سوم ما به د خرقې شريفې د بام تر ناوې لاندي ښخ کړی، چي د زيارت د بام اوبه زما پر قبر باندي توی سي. کله چي په (۱۲۸۲) قمري کال د محرم الحرام پر يوولسمه د سه شنبې په ورځ د قلات دترنک په سيمه کي په جنګ کي مړ سو وروسته ئې خلګو جنازه کندهارته راوړه په د غه ورځ هغه کسان حاضر نه وه چي د ده وصيت ئې په ياد وي موجودو کسانو د ده مړی د خرقې شريفې د زيارت ومخ ته په خالصه ميدان کي خاورو ته وسپاری. وروسته امير شيرعلي خان د خرقې شريفې په خانقاه کښې د يوڅه وخت لپاره ګوښه توب اختيار کړ، يعني اوس هم چي د خرقې شريفې د دالان ومخ ته تاسي کوم قبر وينی دا د سردار محمدامين خان قبر دئ، چي د اميرشېرعلي خان سکه ورور وو. هيڅ وخت دکندهار حکمرانو د خرقې شريفې د ترميم او د دې د فضيلت اړوند د هيڅ ډول خدمت څخه مخ نه دی ګرځولی. (وکيلي: ص، ۱۱۷)

# هنر او ادب

چلوونکی: م.ا. امید

داکټر عبدالرازق پالوال

## دجنګ له میدان څخه و مورته د زوی لیک

موري ما دبل په مرګ ساتلئ ځان دئ
ما پرؤن يو ځوان ويشتلئ پر ميدان دئ

قربان کړئ مي ترځان بل هسي ځوان دئ
هم په خوښ، هم په ناخوښ، هم مي ارمان دئ

دی يو نه دئ د زرونو کورګی وران دئ
را رؤږد سوئ لېونتوب مرګ ئې تاوان دئ

❀❀❀

که مي دی ويشتلئ نه وای ، زه ئې ويشتم
د ژوندؤن له کارؤ باره څخې ايستم

له خپلوانو او دوستانو څخې اخيستم
اوس د ده په وير اخته وور، زوړ او ځوان دئ

ما پرون يو ځوان ويشتلئ پر ميدان دئ
هم په خوښ، هم په نا خوښ، هم مي ارمان دئ

❀❀❀

شل کلن به ؤ په عمرلاندې -باندي
لومړی ځلي به وتلئ ؤ د باندي

ملا تړلئ تلئ وجنګ وته د وړاندي
نه پوهېد چي دی و مرګ ته ور روان دئ

موري ما دبل په مرګ ساتلئ ځان دئ
قربان کړئ مي ترځان بل هسي ځوان دئ

❀❀❀

ورڅخه ول توپکچه او توپک دواړه
په ميدان کښي جنګېدئ په لکه غاړه

هري خوا ته ئې ويشتل کوءل له وياړه
اوس د جنګ پر ميدان پروت تمام ئې آن دئ

ما پرون يو ځوان ويشتلئ پر ميدان دئ
هم په خوښ، هم په نا خوښ، هم مي ارمان دئ

❀❀❀

نه مي پېژند -نه مي اېژند، نا معلوم ؤ
د کم ځای، د کوم قبيل او څه ئې نوم ؤ؟

د چا زؤی، د چا به ورو، د چا به زوم ؤ
هر پيوند ئې اوس شلېدءلئ، بې نښان دئ

موري ما د بل په مرګ ساتلئ ځان دئ
قربان کړئ مي ترځان بل هسي ځوان دئ

❀❀❀

ماکړه خوله د توپک لوړه بيا هم ځوړه
بيا مې ورکړه په نښان د بدن دړه

او چي ونړېد، تري پورته سوه لوخړه
په سپېرو خاورو کښي غوځارسو بې درمان دئ

ما پرون يو ځوان ويشتلئ پرميدان دئ
هم په خوښ، هم په نا خوښ، هم مي ارمان دئ

❀❀❀

چي داورلمبه سوه پورته ماليدء له
او په تک ئې ودانې ونړېدء له

بې چاره سو له خپلوانو او له بله
هم پردې بې چاره ګی، مې زړه پرېشان دئ

موري ما د بل په مرګ ساتلئ ځان دئ
قربان کړئ مي ترځان بل هسي ځوان دئ

❀❀❀

په ويشتو مي ئې زړه خوپ او تندی روڼ سو
پر ژغورني ئې آسمان هم ړوند او کوڼ سو

په درء زاوؤ کښي ئې ورءک آخ ؤ وای سپوڼ سو
دی يو نه دئ د زرؤنو کورګی وران دئ

ما پرؤن یو ځوان ویشتلئ پر میدان دئ
هم په خوښ، هم په نا خوښ، هم مي ارمان دئ

❀❀❀

دء به ماغوندي لر له پلاراو مورهم
یا يې نجلی وي، یا بې ناوي، اولا خورهم
هم به دوی وربانـدي وژاړي او نورهم
که آسمان وربانـدي ژړءل طوفان دئ
موري ما دبل په مرګ ساتلی ځان دئ
قربان کړئ مي ترځان بل هسي ځوان دئ

❀❀❀

په خواریو به لوئ کړئ مور په نازؤ
په هوس به ئې څوک ویښه، څوک همرازؤ؟
په ژوندؤن کښېبه ئې کوم امید شهبازؤ
اوس ترې پاته د ژوندون سازؤ سامان دئ
ما پرون یو ځوان ویشتلئ پرمیدان دئ
هم په خوښ،هم په ناخوښ،هم مي ارمان دئ

❀❀❀

دی به ما غوندي خاوند د ارمانوؤ
هم ترېئ د هوس د پیمانوؤ
په زړه ئک به د ځوانی د دورانوؤ
نورئې ختم د ژوندؤن دورؤ دوران دئ
دی یو نه دئ د زءزؤنو کورګی وران دئ
را روږد سوئ لېونتوب مرګ ئې تاوان دئ

❀❀❀

که مي دی ښکار سوئ نه وای زءئې ښکاروءم
لکه دی هسي به زء پر مځکه غوځاروءم
د ژوندؤن له ښو ښادیو څخه به خواروءم
زما پایښت، زما لویښت دبل په زیان دئ
ما پرؤن یو ځوان ویشتلئ پرمیدان دئ
هم په خوښ، هم په نا خوښ، هم مي ارمان دئ

❀❀❀

هغه ګل چي غوړېدلئ ؤ، تباه سو
دا مرغه د ژوند له باغه په هوا سو
ارمانونو ته لوی سوئ پای ئې داسو
دا مي ویاړ، که مي پیغور، که مي عصیان دئ؟
ما پرؤن یو ځوان ویشتلئ پر میدان دئ
هم په خوښ،هم په ناخوښ،هم مي ارمان دئ

❀❀❀

را په پېښه بد مرغي ده، جهالت دئ
دوست دښمن نه ځله پېژنو شامت دئ
یوله بله سره وژنو حماقت دئ
مړ سوءل پاته ترې روان د ژوند کاروان دئ
موري ما دبل په مرګ ساتلئ ځان دئ
قربان کړئ مي ترځان بل هسي ځوان دئ

❀❀❀

سپیان او زءرکي سره جنګوؤ کتیان هم
جنګوؤ سره چرګان او کره کان هم
دوی صپهو دي، که بوده دي، که مرغان هم
نورچي مور.هم سره جنګوي سورآن دئ
ما پرؤن ی ځوان ویشتلئ پر میدان دئ
هم په خوښ، هم په ناخوښ، هم مي ارمان دئ

❀❀❀

بد بدوان دي، جاهلان دي، اوچادیان دي
په لمسؤن دبل د خپلو دښمنان دي
عقل نسته، دا سرؤنه تش کډوان دي
له پالوال څخه ئې ورءک دسمون توان دئ
موري ما دبل په مرګ ساتلئ ځان دئ
قربان کړئ مي ترځان بل هسي ځواندئ
هم په خوښ، هم په نا خوښ، هم مي ارمان دئ

عبدالهادي عطایي ملا

## غزل

ټوله شپه یې په خوب وینم، چې را وینښ سم خوب مې هېروي
ټوله ورځ یې پل څارمه، یا راغلی یا تېروي
دا څه ستړې ده راپېښه، د سایو سره ګرزان سو
یا په سیوري مې غېږه که، یا ښکالو رانه چاپېروي
وخت باچا شانته روان دی، ژوند مجبور اسیر غلام دی
زه یم ناست تلم کلونه، ښادي پاو خیږي غم سېروي
خپله خاوره مور چې نه وي، د بل فرش د ګلو څه کړم
د میرې بالښت ازغنه! خوب دې نسته، بس شپه تېروي
تنکی حسن چې لو ییږي، د دید ن تنده ګرمیږي
سباوون لمر ته کاته سي، غرمه نه سي، تاویې ډېروي
د تن سر خو د بل سر دی، ورکول دي آسانه
تل ژوندی شهید هغه وي چې د ځان له سره تېروي
جنت غرب صوفي ته وایه، لږ حیا د رب له ستر ګو
حوري غواړې بې شماره، خو ذکرونه دې په شمېروي
ځواني ولاړه شهې راغله، اوس به څه ګلان کرمه
چې نصیب یې مستي نه وي، وخت او بخت یې تېر و بېروي

وحیدالله بریال

## غزل

تا سره شپه کوم: نشه کومه
لږه دمه کوم: نشه کومه!
کله در وګورمه ویلي شمه
کله لمبه کوم: نشه کومه!
ته بې ایمانه یې نفلونه کوه
زه ګوزاره کوم: نشه کومه!
باقي شراب به په جنت کې څښمه
نوره توبه کوم: نشه کومه!
سره ووهۍ، پیاز او مستې غواړمه
داسې غرمه کوم: نشه کومه!
درځم ځوابه: بنګ به هم دروړمه
کلکه وعده کوم: نشه کومه!

خلیل احمد قیس

## غزل

دا نشه دي د شراب ده که انوار زما دا غزل دئ
دا هېر جنو ستر ګو راز ته چا راوړی تور کجل دئ
سي نا پو باچا د ژړونو سي هو ښیار ملنګ د میني
څه بد نامه نتداره ده که بد نام د ژوند محل دئ
د څلور و خولو یارانو دا مو څه راسره وکړه
ګنهګاریې کړم د میني څه باور ستا پر اوربل دئ
د خماري نجلی خدایه در معلوم راز د حسینو
که ګناه ده که ثواب دئ که انسان دئ که عمل دئ
بیاربابا او نغمې سرسوې تبلې چاودي له مستیه
ساقي ستا له ستر ګو جار سم راته وایه څوک غل دئ
قند هار دئ که دوږخ دئ په دي نه پوهېږم حسنه
څه یې خلک څه یې مینه څه بې کیفه تاج محل دئ
قیس ګوهر به کله وکړي د بې دردو له بازاره
نې له لمره مدت غواړم نې جنت کي زما پل دئ

صدیق الله مین

## غزل

د مرګ کیسې دي د ژوندون خبره څوک نه کوي
هر سړی ستړی د سکون خبره څوک نه کوي
لا خو مې زړه درد کوي غم مې لا کم شوی نه دی
وراندي زما دي د بېلتون خبره څوک نه کوي
نن ته د نن فکر په کار صبا صبا به ګورو
مخ ته چې ځي نو د پرون خبره څوک نه کوي
ناري دي چیغې دي واي وران دي شي دا ګډ وډ نظام
د زړه د تله د بدلون خبره څوک نه کوي
بس بې اختیاره که د چا چا نه مینه! وشوه
که نه نو د لته د سمون خبره څوک نه کوي

رياض فدا

## غزل

تـه مـي پـه سترګو کـي اغـزی ښـه يـې
زه ليـونی تـه ليـونۍ ښـه يـې

رانـړدی نشـی قـاتلي غـم جـوړېږي
تـه لـه مـا هغسـي پـردۍ ښـه يـې

تـه خفـه کيـږه مـه حـالات داسـي دي
کنـې تـه ماتـه لـه نـرۍ ښـه يـې

ښـکاره کـوم دي نـه رسـوا بـه شـمه
همداسـي پټ قسـم پـه خـدای ښـه يـې

وينـي مـي وخـوره مالـه راځـه پـه مينـه
ارمانـه دغسـي ژونـدی ښـه يـې

رياضـه زه پـدی کـي څـه ووايـم
چـي ليـونی ښـه کـه سـړی ښـه يـې

الماس دراني

## غزل

تـوره تيـاره بنـده کوټـه د خـاورو بـوی او ماښـام
سـتا جـدايي د زړه چـودون زمـا سـلګۍ او ماښـام

د غـم بادونـه تـوري وريځـي نشـته سـتوري سـپوږمۍ
لويـه صـحرا لاره اوږده اوري ږلـۍ او ماښـام

سـتا اشـارې مـړاوي کا تـه لـه نـازه ډکـه خنـدا !
خيـال تـه راځـي هغـه شـپه ورانـه بلـۍ او ماښـام

لـه مـودو ولګـه پـه زړه بـوج خـزان وهلـې څهـره!
پيونـد جـامې سـوری څـادر سـپوره ډوډۍ او ماښـام

الماسـه! نـه هغـه شـپونکی شـته نـه د غـره لمنـه
د وجـود درد مـي ټولـوي غـږ د شـپيلۍ او ماښـام

غزن نيازی

## غزل

تـر څـو چـي تـه يـې پـه وجـود کـي بـه مـي سـا هـم وي
سـپوږمۍ بـه هـم وي او پـه ښـار کـي بـه رڼـا هـم وي

ماښـام چـي مسـت شـي د چنچڼـو پـه موزونـو چغـو
زمـا پـر شـونډو مضـطرپه شـان موسـکا هـم وي

حسـن مـي زده کړلـو لـه خپلـو خواهشـاتو څخـه
مينـه بـه هـم کـوم پـه زړه کـي بـه مـې دا هـم وي

خلـک ګمـان کـوي چـې ژونـد پـه نمـايش مـين دی
څـو چـي دا فکـر وي بـد رنګـه بـه دنيـا هـم وي

پـه سـرابونو کـي مـي وموندې د ځـان تصـويره
بيـا زه خبـر شـوم چـي سـيندونو کـي صـحرا هـم وي

غزنـه عقـل دي د خيـال سـترګو کـي نـه غړېږي
بيـا هـم حـدود لـري کـه څـومره مـاورا هـم وي

ح. مينه وفا

## غزل

خـوږ، انځور، نجلۍ، لاسـو کـي کتابونـه
لـه بنـد خـلاص شـول پښـتنو کـي کتابونـه!؟

دا بنګـړي، لښـتۍ، رانجـه نـه سـوداګره!
ماتـه راوړه بنجـارو کـي، کتابونـه

تورتمونـه دي آزاد، پـل ږدم پـه وېـره
دلتـه بنـد پـه زولنـو کـي کتابونـه

زه نالوسـتې يـم پـه راز د ښـکلو سـترګو
او تـا راوړي پـه ليمـو کـي کتابونـه

خـوږه يـاره د غـزل چينـې تـه راشـه!
را د مينـې نښـانو کـي کتابونـه

سعید لودین/ کاناډا

# ستیفن ویلیم هاکینګ

# (Stephen William Hawking)



ستیفن ویلیم هاکینګ ( Stephen William Hawking) تر آینشتاین را وروسته په نړۍ کي یو منلی فیزیک پوه او ساینسدان وو. هغه د (۱۹۴۲م.) کال د جنوري پر اتمه د انګلستان په اکسفورډ ښار کي د فرانک او ایزوبیل په کور کي وزیږېد. مور او پلار ئې له سختو اقتصادي مشکلاتو سره ـ سره خپلو زده کړو ته دوام ورکړ. دواړه په اکسفورډ پوهنتون کي داخل سول. پلار ئې طب ووایه او مور ئې فلسفه، سیاسي علوم او اقتصاد وویل. دوی هغه وخت د شمالي لندن په یوه کلیواله سیمه هایګېټ کي اوسېدل، خو څرنګه چي دغه وخت دوهم نړۍ وال جنګ (۱۹۳۹-۱۹۴۵م.) شروع وو او لندن تر بمبار او حملو لاندي وو، نو مور ئې یوه خوندي ښار اکسفورډ ته ولاړه او ستیفن هاکینګ هلته وزیږېدئ.

هاکینګ د مور او پلار مشر اولاد وو. هغه دوې خوندي او یو بل اخیستل سوی ورور هم درلود. د دوی فامیل ته د یوه خورا ځیرک او غیر عادي فامیل په سترګه کتل کېدل، چي حتا د ډوډۍ د خوړولو پر وخت به ئې لا هم مطالعه کوله او هر یوه به خپل، خپل کتاب په خاموشۍ لوستلی.

هاکینګ خپلي ابتدایي زده کړي د لندن د هایګېټ د بایرن هاوس له ښوونځي څخه پیل کړې، چي وروسته ئې د نوموړي ښوونځي د پرمختګ مېتودونه د ده د هغي ناکامۍ باعث وبلل، چي دی ئې په همدې مکتب کي په لوستلو کي ناکامه کړی وو. د هاکینګ کورنۍ تعلیم ته ډېر ارزښت ورکاوه او د تعلیم د تر لاسه کولو هره ممکنه هڅه ئې کول. د ده پلار غوښتل خپل زوی وېسټ منسټر ښوونځي ته چي د لوړ معیار ښوونځی وو، شامل کړي خو (۱۳) کلن هاکینګ د سکالرشپ د امتحان په ورځ ناجوړه سو او د پلار دا ارمان ئې پوره نه سو او په خپل زاړه ښوونځي کي ئې زده کړو ته دوام ورکړ. هاکینګ په ښوونځي کي د آینشتاین په

نامه مشهوره وو. هغه خپل د ریاضي د ښوونکي په مرسته د ساعت له پرزو، د زاړه ټلیفون له سویچ بورډ او نورو مستعملو شیانو کمپیوټر جوړ کړ او د همدې ښوونکي څخه په الهام ئې غوښتل د ریاضیاتو زده کړې ته دوام ورکړي، خو پلار ئې مشوره ورکړه چې طب انتخاب کړي. ځکه د هغه په نظر په ریاضیاتو کې دوډۍ نه سي پیدا کېدلای. پلار ئې غوښتل چې زوی ئې د ده په څېر په اکسفورډ پوهنتون کې طب ووايي، خو هاکینګ فیصله وکړه چې په فیزیک او کېمیا کې به زده کړې کوي.

هاکینګ خپلې لوړې زده کړې د (۱۹۵۹م.) کال



په اکتوبر کې د اوولسو کالو په عمر د اکسفورډ په یونیورسټي کالج کې پیل کړې. په لومړیو اتلسو میاشتو کې خورا دیغ وو او یوازیتوب احساس ئې کاوه. هغه ته د پوهنتون اکاډمیک کار تر حد زیات آسانه ایسېدئ. د هاکینګ دفیزیک استاد رابرټ برمن وایي:

"هاکینګ ته هر څه آسانه ول او دا احساس ور پیدا سوی وو، چې په دې اړه باید یو څه وکړي خو د پوهنتون په دوهم او دریم کال په هغه کې ډېر بدلون راغلی او دا کوښښ ئې کاوه چې د پوهنتون په زده کوونکو کې ځان طاق کړي".

ستیفن هاکینګ د خپل پُرثمره ژوند په موده کې پنځلس آثار ټولنې ته وړاندې کړل، چې اکثرو ئې ډېرې لویې جایزې وګټلې. د وخت لنډ تاریخ او د اکابیرو پر اوړو کتابونه ئې د بېلګې په ډول یادولای سو.

هاکینګ له (۱۹۶۶م.) کال څخه تر (۲۰۱۵م.) کال پورې د خپل اکاډېمیک کار په سیله کې د نړۍ (۱۸) ډېرې لویې علمي ـ اکاډمیکي جایزې او تقدیرنامې ترلاسه کړې دي.

په (۱۹۶۳م.)کال کې د هغه په بدن کې د لومړي ځل له پاره د فلج علامې ښکاره سوې او په څو کلونو کې ئې داسې مرحلې ته ورساوه، چې بېله باړخوګانو څخه ئې د بدن بله عضوه نه سوای ښورولای، خو ذهن ئې سالم وو او تر مرګه ئې د فیزیک د علم په دنیا کې سخرې غوټې په خلاصې کړلې.

ستیفن هاکینګ د (۲۰۱۸م.)کال د مارچ پر ۱۴ د مرګ داعي ته ځان وسپاره. هغه پر خدای جل جلاله باور نه درلود خو لوی او قادر متعال رب د هغه په مکمل فلج وجود کې خپل کمال او خلقت انسانانو ته ښکاره کاوه. هغه څه چې په بدن جوړو او سالمو ساینسپوهانو نه سوای تر لاسه کولای ستیفن هاکینګ په مکمل فلج وجود، خو کارنده دماغ تر لاسه کړل. په دې کې به ښایي یو لوی عبرت وي او هغه دا چې موږ صرف او صرف فکر او دماغ انساني کمالاتو او لوړو درجاتو ته رسولای سي. د فکرونو جوړول د ځان، ټولنې او په مجموع کې د بشریت جوړول او لوړو درجو ته رسول دي.

سيف الدين لودين

# د سفالين لښکر

دا مجسمه د سفالين د لښکر يو تر ټولو مشهور او غښتلی ډلګۍ مشر (چين شي هوانګ) دی، چې وروسته د چين يو نوموتی امپراتور هم تېر سوی دئ.
د ده د ژوند زمانه تاريخ پوهان تر مېلاد مخکي د ۲۴۷ – ۲۲۰ کلونو تر منځ اټکلوي.



په ۱۹۴۷م کال کي د چين د شي يان په ښار کي يو لوی قبر پيدا سو، چي اوږدوالی ئې ۵٦ کېلومتره مربع ته رسېدی، تاريخ پوهانو ډېري کيندني وکړې او تر اوسه لا هم رواني دي.
د دې ښار په شاوخوا کي د چين د لومړني فيوډالي امپراطور يعني د چين شي هوانګ په نامه د امپراطور لويه مقبره او د دې مقبرې په څنګ کي د عسکرو او اسانو د مجسمو موزيم د چين په دننه او بهر کي ډېر شهرت پيدا کی او خلک ئې د نړۍ اتمه عجيبه يا معجزه هم بولي.
هوانګ د چين په فيوډالي ټولنه کي لومړنی امپراطوروو، چي په خپل ژوند کي ئې د ټولني، اقتصاد او کلتور د پرمخبېولو لپاره يو لړ تدابير ونيول. د مثال په ډول هغه پولي واحدونه، ژبني لغتونه او اندازه ګيري اصلاح کړې او د شمالي قومونو د تېري سره د مقاومت لپاره ئې لوي دېوال هم جوړ کئ، د نوموړو تدابيرو پر بناء (چين شي هوانګ) امپراطور د چين په تاريخ کي يو مشهور سياستمدار وګرځېد، هغه د واکمنی په موده کي د زياتو بشري او مالي قوتونو په واسطه د خپل ځان لپاره ډېره لويه مقبره هم جوړه کړه.



د چين شي هوانګ مقبره د چين د شان شي ولايت د شي ان ښار په اطرافو کي د لي شان په نامه سيمه کي جوړه سوې ده، د ټولي مقبرې مساحت ئې ۵٦ کېلو مترو ته رسېږي او د مقبرې په شاوخوا ځايونو کي نوري کوچنۍ مقبرې هم پرتې دي، چي د چين شي هوانګ د امپراطور د مقبرې جوړوونکي قبر هم پکښې دي، په هغه ځای کي د ده نوکران او د عسکرو او أسانو

بلکي په نړۍ کي تر ټولو لويه مقبره بلل کيږي، د دې مقبرې د جوړېدو کار ۳۵ کاله نيولي وه، د مقبرې مساحت دوه لکه شل زره مربع متره دی، د مقبرې په شاوخوا ځايونو کي زيات قصرونه، مانۍ او نوري ودانۍ هم جوړي سوي، چي د ټولو ودانيو په ګډون د مقبرې عمومي مساحت دوو مليونو يو لکو اتيا زرو مربع مترو ته رسېږي، خو تر اوسه پوري د چين شي هوانګ د



سفاليني مجسمې هم ښخي سوي دي.

د چين شي هوانګ مقبره د شي ان ښار د ختيځ په ۳۵ کيلومترۍ کي پرته ده، جنوبي خوا ته ئې د لي شان غرونه او شمالي خوا ته ئې د وي خه په نامه سيند بهېږي، دچين شي هوانګ مقبره نه يوازي په چين کي

امپراطور مقبره هم نه ده راکندل سوې.

مطلب د دې مقبرې داخلي حالات څه ډول دی او کم ـ کم شيان پکښې موجود دي ؟ دا هم د خلکو لپاره يوه معما ده چي تر اوسه پوري نه ده حل سوې.

د چين شي هوانګ امپراطور د مقبرې ختيځې خوا ته د



عسکرو او أسانو د سفالينو مجسمو موزيم دئ، دغي سفاليني مجسمې د چين شي هوانګ امپراطور د جنازې د ښخولو په وخت کې تر ځمکې لاندې پټې سوي او په ۱۹۷۴ کال کې د لرغون پيژندونکو لخوا کشفي او د ځمکې څخه راايستل سوي دي، چې شمېر ئې تقريباً اته زرو دانو ته رسېږي، د عسکرو او أسانو د مجسمو لويوالی د ريښتيني خلکو او أسانو سره برابر دي.

دغه مجسمې په دريو لويو جېوو کې ايښول سوي دي او په جلا ـ جلا توګه په ۱۹۷۹ کال، ۱۹۸۹ کال او ۱۹۹۴ کال کې راايستل سوي او پر نومړو دريو لويو جيوو باندې درې لوي تالارونه جوړ سول، تر څو سيلانيان ئې په ښه ډول ووينې، کله چې ئې د تالارونو د جوړېدو کار تمام سو، وروسته په ۱۹۸۷ کال کې دا موزيم د ملګرو ملتو د يونسکو د سازمان لخوا د نړيوالو کلتوري ميراثونو په ليست کې شامل سو.

داغسې پسې راتېر سه، د چين امپراطوري دورې د عسکرو او أسانو د مجسمو په موزيم کې د ميس څخه جوړ سوي دوې د اسانو ګاډۍ هم ليدل کيږي، نومړي دوې ګاډۍ د ۱۹۸۸ کال په لومړيو ورځو کې د چين د لرغون پيژندونکو لخوا د چين شي هوانګ امپراطور د مقبرې په لوېديځه خوا کې د اوو مترو په ژور ځای کې کشف سوي دي، د ګاډيو سره ګاډۍ وانان او أسان هم ليدل کيږي چې هغه هم د ميس څخه جوړ سوي او لويوالی ئې د ريښتينو کسانو او أسانو د نيمې برخې سره برابر دی.

د ميسو دا ګاډۍ او أسان چې اوږدوالی ئې درې اعشاريه اته ويشت متره او ږدوالی ئې يو اعشاريه صفر څلور متره لوړوالی لري، د چين په قديمي اثارو کې تر ټولو ډېر ستر ارزښتناک او قيمتي شيان ګڼل کيږي.

که ژوند باقي وو، د دې شيانو په اړه به د چين د نورو ښارونو د سترګو ليدلی حال هم درسره شريک کم.

۲۹-۱۰-۲۰۱۷

جان محمد مهربان

# د پرېکړو پروسه

## Decision Making Process

د ستونزو او فرصتونو په اړه پرېکړه کول د بشري ژوند یوه اساسي برخه ده. انسان چي هر څه کوي دپرېکړو له لاري ئې کوي. اقتصادي سیالۍ، ګټل او نړۍ والو مارکیټونو ته ځان رسول مؤسسات دې ته مجبور کړي دي، چي هر وخت په هره سطحه کي پرېکړي وکړي؛ ځکه خو اوس د کابل په شخصي پوهنتونو کي د پرېکړو مضمون تدریسیږي. دمختلفو علومو پوهانو دپرېکړو عصري تیوري ته دشلمي پېړۍ په نیمایي کي انکشاف ورکئ. اوس یو علمي مضمون دئ، چي په پوهنتونو کي تدریسیږي. د اقتصاد، اروا پوهني، احصایې، سیاست او د ټولنیزو علومو پوهان اکثره وخت د پرېکړو له تیوري څخه کار اخلي ( ایس اون حنسن، ۱۹۹۴).

د پرېکړو تسلسل له ورځني عادي ټولنیزو مسایلو څخه را پیل بیا تر ملي، اقتصادي او سیاسي ستراتیژیکو مسایلو رسیږي. ستونزي ته دحل لار پیدا کول پرېکړه نه ده، بلکي یوه اراده ده. یوه پرېکړه تر هغه مهاله پرېکړه بللای نه سو، چي په عمل کي عملي سوې نه وي(ډروکر ۱۹۶۷).

انسانان په خپل ژوند کي دپرېکړو کولو ستونزه لري مګر پرېکړي باید وکي. لکه پورته چي مي وویل چي پرېکړي دفردي ژوند له ساده مسایلو څخه نیولې بیا تر ملي او نړۍ والو مسایلو رسیږي. مثلاً راتلوونکې جمعه به چیري ځو، څه به کوو؟ دمکتب له فراغت څخه وروسته به کوم مسلک انتخابوو؟ خپل په ژوند کي به کوم بدلونونه راولو او څنګه بې راولو؟ له چا سره به واده کوو؟ لومړی کور جوړ کم او که واده وکم؟د دفتر له پاره نن کوم کالي واغوندم؟ په پېچلو او جنجالي کاري چاپیریالونو کي به ځانونه څنګه عیاروو؟ دکمپنۍ تولیدات به نوي ولایتونو او نورو هیوادونو ته څنګه رسوو؟ په افغانستان کي به سوله او امنیت څنګه راولو؟ دپاکستان په مقابل کي به خپل سرحدونه څنګه ساتو؟ د افغانستان اوبه به څنګه تنظیموو؟ افغانان به د پردیو له مرستو څخه کله خلاصوو؟ دغه سوالونه په معقولو پرېکړو حلیږي.

ځیني پرېکړه کوونکي په خپله پرېکړي کوي او ستونزه حلوي. ځیني بیا په معلوماتو پسي ګرځي چي تر پرېکړي مخکي په هرڅه پوه سي. ځیني کسان بیا دنورو په سپارښتنه پرېکړي کوي او ځیني بیا لاس تر زني لاندي حیران پاته وي، وخت ته په تمه وي چي هرڅه به ور سم کي. پرېکړي باید اغېزمني وي. اغېزمني پرېکړي هغه پرېکړي دي چي اپشنونه له یوې سیستماټیکي لاري داسي پکښي انتخاب سي چي د کاغذ پر مخ پاته نه سي، بلکي عملي سي. په مؤسساتو

کې دغه مسؤلیت دمدیرانو پر غاړه دئ. ( ډروکر ۱۹۶۷).

دیوې ستونزې دحلولو له پاره د څو حل لارو څخه د یوې حل لارې انتخابولو ته پرېکړه وایي. له څو اپشنونو څخه د عمل له پاره د یوه اپشن انتخابولو ته دپرېکړې پروسه ویل کیږي. د پرېکړو په پروسه کې دوه شیان داخل دي:

یو، بصیرت/تصور (intuition)

دوه، استدلال (reasoning)

انسانان یا د خپل تصور، پوهې او بصیرت پر اساس پرېکړه کوي او یا د استدلال/دلایلو له لارې ستونزه حلوي. د تصور پراساس پرېکړه کول سم کار دئ؛ ځکه چې هر انسان په خپل ژوند کې مختلفې تجربې لري، ارزښتونه ئې بېل او زده کړو اندازه ئې فرق کوي. د خپلو پخوانیو تجربو پر اساس د یو مشکل حلول او په اړه ئې پرېکړه کول له تېروتنو څخه خالي نه وي. دنیا هغسې نه ده لکه څنګه چې ئې موږ وینو. حالات، چاپېریال، مسایل او ملګري داسې نه دي لکه پخوا چې ول نو؛ هره پرېکړه باید د شخصي تصور پراساس و نه سي. په حقایقو پسې باید وګرځو. دپرېکړو په اړه دلایل پیدا کول په دې معنی چې واقیعتونه باید راوسپړو او د ستونزې ریښې پیدا کړو. د پرېکړو دپروسې د استدلال په برخه کې بیا شخصي عواطفو، تصور او پخوانیو فردي تجربو ته پام نه کیږي. ځینې پرېکړې ساده وي؛ لږ وخت غواړي او یوازې په یوه نفر اړه لري، استدلال او واقیعتونو ته چنداني ضرورت نه وي، مګر ځینې پرېکړې بیا پېچلې وي؛ ټوله کورنۍ، مؤسسه او ټولنه ورڅخه متاثیره کیږي. ښه خبره داده چې د پرېکړو په پروسه کې له شخصي بصیرت او استدلال دواړو څخه کار واخیستل سي. اغېزناکه پرېکړه کول په منېجمینټ کې دلاندې مرحلو په تطبیق کولو سره کیږي:

**۱- دستونزې پېژندل Identifying a problem:**

د اوسني او مطلوب حالت ترمنځ توپیر ته ستونزه ویل کیږي. مثلاً، مارکېټینګ منېجر استعفاورکړه، اوس ئې پر ځای باید بل کس استخدام سي. د مارکېټینګ منېجر استعفاء اوسنی حالت( Current state)او د نوي کس استخدام مطلوب حالت( desired state) دئ. دمارکېټینګ منېجر نه ستوالی، دمؤسسې یوه ستونزه ده چې په اړه ئې باید پرېکړه وسي.

**۲-دپرېکړې معیار ټاکل Identifying Decision Criteria:**

کریټیریا هغه معیار دئ چې پر اساس ئې دیوشي په اړه قضاوت کیږي. د پرېکړې معیار د پرېکړې کولو اساس جوړوي ځکه چې په دې کې مهم اوغیر مهم عوامل په نخښه کیږي. د مارکېټینګ منېجر د استخدامولو د پرېکړې د پروسې معیارونه شاید داسې وي:

الف.د وظیفې اړوند لیاقت لرل.

ب.درهبرۍ مهارتونه لرل.

ج.دکمونیکېشن یا دافهام او تفهیم مهارتونه لرل.

د.دپلان جوړولو او تحلیل مهارتونه لرل.

هـ.او په مارکېټینګ کې مسلکي تجربه لرل.

دمارکېټنګ نوی منېجر د دغو معیارونو پر اساس استخدمولای سو، مګر دا خبرې د حالت او شرایطو تابع دي.

**۳- میعارونو ته نومرې ورکول Allocating Weights to Criteria:**

هغه معیارونه چې په دوهم قدم کې ټاکل سوي دي، د پرېکړې په درېیم قدم کې ورته کمي/عددي

ارزښت ورکوو. عددي ارزښت ټاکل د هرمعیار اهمیت راته ښئي، لکه:

| شماره | معیار | ارزښت/نومري |
|---|---|---|
| ۱ | دوظیفې اړوند لیاقت | ۳ |
| ۲ | د رهبري مهارتونه | ۵ |
| ۳ | د افهام او تفهیم مهارتونه | ۳ |
| ۴ | دپلان جوړولو او تحلیلولو مهارتونه | ۴ |
| ۵ | مسلکي تجربه | ۱ |

۴ـ بدیلونه/ الترنیټفونه جوړول **Developing Alternatives:**

په څلرم قدم کې دستونزي د حل ممکن اپشنونه انتخابوو. د پورته ستونزي د حل له پاره، د هغو کاندیدانو له اسنادو څخه یو لنډ لیست جوړ وو، چې دمارکېټینک منېجر پوسټ ته ئې را استولي دي.

۵ـ بدیلونه تحلیول **Analyzing Alternatives:**

له پورته معیارونو سره سم چې په دریم قدم کې ورکول سوي دي، اپشنونه داسي ارزو چې دکاندید سي وي (CV) مطالعه کوو او بیا نومرې ورکوو. دغه کار به دلاندي جدول په کومک یو څه ساده او تشریح کم:

| دبدیلونو فورمه | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| شماره | کاندیدان | مربوط لیاقت | د رهبري مهارتونه | د افهام او تفهیم مهارتونه | دپلان جوړولو او تحلیلولو مهارتونه | مسلکي تجربه |
| ۱ | فرید باتور | ۳ | ۵ | ۳ | ۴ | ۱ |
| ۲ | عصمت خالد | ۳ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ |
| ۳ | فرید عابد | ۲ | ۳ | ۲ | ۳ | ۱ |
| ۴ | بشیر صالح | ۳ | ۳ | ۳ | ۳ | ۱ |
| ۵ | نقیب قریشي | ۲ | ۳ | ۲ | ۲ | ۱ |
| ۶ | غني حسن | ۳ | ۵ | ۴ | ۴ | ۱ |

پنځم قدم ته دوام ورکوو او داسي ئې ارزیابي کوو:

| د بدیلونو یا اپشنونو ارزول | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| شماره | کاندیدان | مربوط لیاقت | درهبري مهارتونه | دکمونیکېشن مهارتونه | دپلان جوړولو او تحلیل کولو مهارتونه | مسلکي تجربه | جمله |
| ۱ | فرید باتور | ۳ | ۵ | ۳ | ۴ | ۱ | ۱۶ |
| ۲ | عصمت خالد | ۳ | ۴ | ۳ | ۲ | ۱ | ۱۳ |
| ۳ | فرید عابد | ۲ | ۳ | ۲ | ۳ | ۱ | ۱۱ |
| ۴ | بشیر صالح | ۳ | ۳ | ۳ | ۳ | ۱ | ۱۳ |
| ۵ | نقیب قریشي | ۲ | ۳ | ۲ | ۲ | ۱ | ۱۰ |
| ۶ | غني حسن | ۳ | ۵ | ۴ | ۴ | ۱ | ۱۷ |

۶- دیوه بدیل انتخابول **Selecting an alternative:**

په شپږم قدم کې تر ټولو ښه بدیل انتخابوو. تر ټولو ښه بدیل هغه دئ چي له معیارونو سره برابر او لوړه نومره ئې اخیستې وي. په پورته لیست کې دغه کس غني حسن دئ.

۷- د بدیل عملي کول **Implementing the Alternative:**

په اووم قدم کې خپله پرېکړه عملي کئ. دپرېکړي ټول معلومات له لوړ رتبه منېجرانو او نورو اړوند شعبو سره شریک کئ چي د هغو تائیدي واخلئ.

۸-ارزیابي**Evaluation:**

په اخیري قدم کې د پرېکړي پروسه یوار بیا ارزیابي کئ چي پرېکړه مناسبه ده که یا؟ ځان ډاډمن کئ، چي دپروسې هر پړاو مو سم وو؟ ستاسو دمطلوب حالت غوښتنه پوره کولای سي؟ که نتیجه سمه نه وه، نو پروسې ته باید له سره کتنه وسي چي په کوم قدم کې بې احتیاطي سوې ده، هغه پیدا او اصلاح ئې کئ!

د ستونزو او پریکړو ډولونه:

منېجران مختلفي پرېکړي کوي خو؛ پرېکړي عموماً د منظمو او نامنظمو ستونزو په اړه وي. کله چي په منېجمینټ کې دستونزو یا فرصتونو په اړه خبري کیږي، هدف ورڅخه د پرېکړو کول دي. پرېکړه د دې له پاره کیږي چي ستونزه حل سي او پر ستونزو ددې له پاره بحث کیږي چي په اړه ئې یوه پرېکړه وسي، چي یا مشکل حل سي او یا یو فُرصت تر لاسه کړو چي ګټه تر لاسه کړو. پرېکړي لاندي څو ډولونه لري:

۱-منظمي پرېکړي**Programmed Decisions:**

کله چي د پرېکړو په اړه ږغیږو، د منظمو او نامنظمو ستونزو په اړه خبري کوو. که ستونزه هر کله یا ډېر وخت تکراریږي، په مؤسساتو کې ئې د حل یوه منظمه تایئد سوې او تحریري پریکړه هم سته. منظمي پرېکړي هغو پریکړو ته ویل کیږي چي:

الف) تکراري او روزمره وي.

ب) د حل له پاره ئې یو خاصه طریقه وي.

ج) کرنلاري مخکي له مخکي ورته جوړي سوې وي.

مثلاً، دمؤسسې یو کارمند وظیفه پریږدي. یو پخوانی مشتري مؤسسې ته د دوه سوه (۲۰۰) موټرانو جوړولو فرمایش ورکوي. په دفتر کې جینېراټور خرابیږي. برق ځي. ځیني کارمندان کار ته پر وخت نه حاضریږي. ښځینه کارمندانو ته د یو خاص ګروپ له خوا مزاحمت کیږي. ښځینه کارمنداني پر نارینه کارمندانو بې ځایه تور لګوي. یو کارمند/ه په انټرنیټ کې غیر اخلاقي ویډیو یا تصویرونه ګوري. دغه او دې ته ورته ټولي هغه ستونزي دي چي په مؤسسه کې ئې د حل له پاره مخکي له مخکي یوه تایئد سوې او لیکل سوې پرېکړه سته. د نامنظمو ستونزو په اړه نوې پرېکړه کیږي.

۲- نامنظمي پریکړي **Non-programmed Decisions:**

هغه پریکړي دي چي د نویو ستونزو په اړه کیږي. مؤسسه تر اوسه له داسې ستونزو سره مخ سوې نه وي. دغه ډول ستونزي ډېري پېچلي وي. د حل له پاره ئې مخکي له مخکي کومه خاصه طریقه نه وي.

ددغسي ستونزو اړوند پرېکړې اوږدې او مغلقې وي. د مؤسسې هر کارمند د دغوستونزو په اړه پرېکړه کولای نه سي یا ئې صلاحیت نه لري ځکه په دغو ستونزو کي خطر او مبهم والی (uncertainty) نغښتې وي. ددغسي ستونزي پرېکړې تاکتیکي وړتیا(entrepreneurial ability) ته ضرورت لري. یو نوي مارکېټ ته خپل تولیدات عرضه کول. ناتائید سوې تکنالوژي را نیول او کارول. په مارکېټ کي له یوه نوي او پیاوړي سیال سره مخ کېدل او داسي نور ئې مثالونه دي.

داغیزمنو پرېکړو په وړاندي لاندي خنډونه سته. پرېکړه کوونکي ئې باید له مخه ایسته کي:

**یو، کم او یا تر اندازې زیات معلومات لرل:**

که دیوې ستونزي په اړه مو معلومات کم وي نو سمه پرېکړ کولای نه سئ. د اساسي او سمي پرېکړي له پاره وخت ته ضرورت سته چي مهمه ډاټا راټوله سي. او یا که معلومات تر اندازې زیات وي، سړي پکښې ورک کیږي چي څه شي ځني را ټول کم او د چا پر خبره غوږ ونیسم. دغه حالت ته دتحلیل سکته ( analysis paralysis) ویل کیږي او د یو تاکتیک په توګه کار ځني اخیستل کیږي ځکه چي ځیني کارمندان کوښښ کوي چي مؤسساتي پرېکړي قصداً وځنډوي. ددغه مشکل د حل له پاره د پرېکړي مربوط ټول کسان سره راټول کئ؛ ورته وواياست چي کوم معلومات مهم دي او ولي غوښتل کیږي. دپرېکړي دپاره وخت هم ورته وټاکئ.

**دوه، ډېر ګډون کوونکي:**

په پښتو کي یو متل دئ وایي: (چي ډېری سي، مرداری سي.) ګروپي پرېکړي سختي دي ځکه چي ډېر ګډون کوونکي پکښې برخه اخلي. ګډون کوونکي بیا هر یو ځان ته جلا–جلا نظرونه، ارزښتونه، روشونه او فکرونه لري. ددغه ستونزي د مخنیوي یا دحل له پاره، غیر مربوط کسان دي یا د پرېکړو څخه وایستل سي او یا دي پټه خوله پاته سي او یا دا چي یو څو محدود یا حتی یو مشر وټاکل سي او د پرېکړي مسؤلیت دي هغه/هغې ته ور وسپارل سي.

**درې، احساساتي،عاطفي او مضري اړیکي:**

د کورنۍ غړي، ددفتر کارمندان او د ټولني غړي له اوسني حالت سره جوړ/عدت سوي دي. یو له بل سره ئې اړیکي ژوري سوي یا خرابي سوي دي او یا یو له بل سره ښې و بدي خاطرې لري، دښمني او دوستي سره پالي. پرېکړه بدلون رامنځ ته کوي. بدلون شاید فردي ګټه ونه لري نو د پرېکړي څخه متاثیر کېدونکي کسان ئې په اساني نه مني؛ مقاومت درسره کوي. بل مشکل دا دئ چي د پرېکړي ګډون کوونکي خپل رواني حالت نه درسره شریکوي او نه ئې پرېکړه کوونکی په اساني سره تشخیصولای سي. دوی په دې خوشحاله وي چي د یو چا په تاوان او دبل چا په ګټه پرېکړه وسي ځکه چي له یوه طرف سره ښې او له بل طرف سره بدي اړیکي لري. ددغه ستونزي دپاره د مدیریت په علم کي د بدلون مدیریت(change management) په نامه بېل بحث سته. د بدلون مدیریت دتکنالوژي، کارمندانو او اداري جوړښت له بدلون څخه بحث کوي. مسلکي مدیر باید ورڅخه خبر وي چي پر خپل ځای او مناسب وخت استفاده ورڅخه وکي. دوهمه د حل لاره ئې داده چي د پرېکړي له پاره دي باندنی بې طرفه کس راوستل سي. و دغه کس ته دي مشکل وویل سي، د پرېکړي اختیار دي ورکول سي. دریمه لاره ئې داده چي د پلان سوو یا منظمو پرېکړو له تګ لاري څخه دي

کار واخیستل سي ځکه چي هلته هر څه مخکي له مخکي لیکل سوي وي، ځو ک مقاومت کولای نه سي.

۳–ستري او کوچنۍ پرېکړي: هغه پرېکړي چي اوږد مهال تاثیر لري ستري پرېکړي دي. د لوړ صلاحیت لرونکي با تجربه مدیران دغه پرېکړي کوي. هغه پرېکړي چي اوږد مهال تاثیر نه لري یا ئې یو مدیر په خپله کولای سي، کوچني پرېکړي دي.

۴–ساده او پېچلي پرېکړي: که د یوې ستونزي په حلولو کي لږ متحولونه داخل وي، ساده پرېکړي دي مگر که ډېر متحولونه پکښي داخل وي پېچلې پرېکړي دي. ستري پرېکړي بیرته پېچلي پرېکړي دي ځکه چي نور مسایل پکښي داخل دي. کوچني پرېکړي په عیني وخت کي ساده پرېکړي دي ځکه چي جنجالي متحولونه پکښي نه سته یا به ډېر لږ وي! مثلاً سبا ته هوا خرابه ده، طیاره پرواز نه سي کولای او تاسو د پروژو د فعالیتونو دلیدو له پاره باید یو مشخص سوي ولایت ته ولاړ سئ. دحل لار ئې داده چي سفر وځنډوئ یا پر سړک ولاړ سئ او یا خپل د مدیر سره مشوره وکئ.

۵–ستراتیژکي، تاکتیکي او عملیاتي پرېکړي: ستراتیژکي پرېکړي ستري او نا پلان سوي پرېکړي دي. د مؤسسې لوړ رتبه مدیران دغه ډول پرېکړي کوي. د مؤسسې د اهدافو تر لاسه کولو له پاره د منابعو تخصیص یوه ستراتیژیکه پرېکړه ده. مارکیټ ته یو نوی جنس ور معرفي کول ستراتیژکه پرېکړه ده. تاکتیکي او عملیاتي پرېکړي د ستراتیژیکي پرېکړو څخه جوړېږي. په ورځینو چارو پوري مربوط دي او په اړه ئې منظمي پالیسي او پرسیجر سته. د مؤسسې کښته رتبه مدیران دغه ډول پرېکړي کوي.

۶–فردي او گروپي پرېکړي:

هغه پرېکړي چي د ورځنیو چارو مربوط وي، یو څو محدود متحولونه ولري، په اړه ئې منظمه پالیسي وي او هر څوک ئې په فردي ډول کولای سي، دغه ډول پرېکړو ته فردي پرېکړي وایي. مثلاً ستاسو د شعبې یو کارمند دفتر ته هره ورځ ناوخته راځي. دغه مشکل تاسو خپله حلولای سئ بېله دي چي په گروپي ډول بحث پر وسي. هغه پرېکړي چي پر نورو شعبو تاثیر لري یا په مؤسسه کي ځیني تغیرات رامنځ ته کوي، باید په یوازي سر نه، بلکي په گروپي ډول وسي نو ځکه خو گروپي پرېکړه ورته وایي. مثلاً تاسو له اوسني موقیعت څخه یو بل موقیعت ته دفتر نقلوئ، په دې اړه باید له ټولو اړند شعبو سره گډه پرېکړه وسي.

**د الله جل جلاله د نعمتو څه گټه واخلئ**

**د دنیا د حلالو او پاکو نعمتونو څخه پوره گټه واخلئ؛ مگر اسارت ئې مه منئ او زړه مه ورپوري تړئ.**

**ښه وخورئ، ښه واغوندئ او ښه و اوسېږئ، دولت هم وگټئ او له ځان سره ئې ولرئ؛ مگر زړه مه پر بایلئ، د هغه سته والی او نه ستوالی باید تاسو ته یو رازوي؛ که الله جل جلاله تاسو ته په رزق کي پراخي درکړي له خنډ پرته د هغه نعمت په سینه پوري ونیسئ او که مو روزي تنگه سوه نو د الله جل جلا له ورکړه ئې وبولئ او شکر ئې اداء کړئ.**

نوراحمد قران مل

# ماشوم، معصوم، کوچنی

انسان اړ دئ، چې دخپل ټولنیز محیط په چاپیر کې له ټولو پدیدو څخه ځان پوه کړي، چې ورځنیو چارو کې ورته اړتیا لیدل کېږي. دا ډول اړتیا پر عمده دوو برخو چې یو ډول ئې عمومي پدیدې دي، چې انسان په ورځني او اماتور ډول له هغو سره د مخامخ کېدنې په لړ کې اموخته کېږي، چې پایله ئې له ټولنې څخه پر زده کړه متمرکزه کېږي. دوهم ډول زده کړې وي، چې هغوی پر اکاډمیک ډول عیاري وي، چې وروسته په رشتوي ډول تقسیم بندي او نظر د زده کوونکو په غوښتنه ئې د زده کړې له پاره زده کونکي لاس په کار کېږي. په ځینو موارد و کې بیا داسې وي، چې دټولنیزو کړو وړو څخه په زده کړه او دهغې زده کړې داساساتو ټاکنه اکاډمیکه کېدای سي، چې په دې سره له دواړو زده کړو ترکیب سوي معلومات په ټولنه کې داسې را منځته کیږي، چې په شفاهي او کتبي ډول دواړو کې بقاء پیدا کوي، چې همدا څه ځان ته فرهنګي او کلتوري برخې جوړوي. پر همدې بنسټ دموجوده څرنې موضوع، چې زموږ دفرهنګ سره مستقیماً د کوچني یا دماشوم د کلمې څېړنه ده، چې داړتیا له مخې ددې مقالې اساسي موضوع هم پر هغه کلمه راګرځي تقریبا دسرطان او استوا خط تر منځ (۴۰+ درجې او ۵، ۰۰+دقیقې او + ۵ درجې + ۵، ۱دقیقې) دوختیز ساعتي تغیر په نظر کې نیولو سره، چې د (۶۰ او ۷۵ دعرض البلدونو) دساحې تر پوښښ لاندې راځي مېشت اولس پښتنو کې دا د (ماشوم) کلمه زیاته کارول کېږي.

بناً ددې کلمې دڅېړنې څخه هدف دادئ، چې موږ پوه سو ماشوم لغت خپله دپښتو ژبې له آر او سر څخه سر چینه اخلي. پر دې کلمه تر اوسه پورې تفصیلي لیکنې یا تحقیق، د دې کلمې اصلي ریښه، چې عربي ته منسوبېږي ولې په خپله په پښتو ژبه په ځانګړي ډول د غربي پښتنو په سیمه کې هغه اصلي کلمه (کوچنی) کارول کېږي تر څېړنې لاندې نیول سوې ده.

ماشوم، معصوم او کوچنی د ماشوم مروجه کلمه د پښتو لیک دود او ګړ دود په لړ کې د (وړوکي، وړکوټي، کوچني او معصوم) په کلماتو یادېږي. یوه داسې کلمه ده، چې د افغانستان د مشرقي سیمو(ننګرهار، کونړ، لغمان، نورستان) په پښتني ګړ دود کې په عامه توګه کوچني ته په خطاب او غیاب کې د عامه اسم په توګه

کارول کېږي. اسم د عربي ژبې مثل سوې کلمه ده، په دري يا فارسي کې هم په دغه ډول کارول کېږي. په پښتو ورته نوم، په فارسي نام، په عربي کې اسم او په انګليسي ورته(noun) ويل کېږي.

پر دې بنسټ دیادو سیمو (جلال اباد، کونړ، لغمان او نورستان) په ځینو برخو او کليو کې ورسره په معنی کې شريکه او لهجوي جوړښت کې متفاوته کلمه (حیوان) هم ورسره دیادوني وړ ده. د ماشوم کلمه د لوېديځو او جنوب لوېديځو پښتني سیمو (زابل، کندهار، هلمند، فراه، هرات او بادغيس) په برخه کې مترادف کلمات او تعويضات له ځانه سره لري.

د لوېدیځو (بادغیس، هرات، فراه، شینډنډ، تورغونډۍ) درنو پښتنو دا سيمه، چې غربي مرکز ئې په يادو سوو سيمو کې دئ د يادوني وړ دي. پيلامه ئې د ميدان وردګ او غزني ولايتونو پرمرز د (شش کله) شيش ګاو له سيمي نيولې د (اندړو، مقر، قره باغ، ده چوپان، خاکران، شا جوی، مېزاني، باديني، شينکۍ، ښار صفا، جلدک، معروف، ارغستان، دامان، کندهار مرکز، ډنډ، بولدک او بيرته په افغانستان کې ميوند، هلمند، ده شو، باغني، باغران، ترين کوټ، ميانشين، خان نشين، خوني، کجکي، نو زاد، دلارام، فراه رود، ادرس کن، انار دره، فراه مرکز، هرات مرکز، پښتون زرغون او ... کې د لوېديځ افغانستان تر (تورغونډۍ او قيصار) او همدا شان د پښتون مېشتو سيمو د کوټي، چمن، کلا عبدالله، ميزی هډې، سرانان، کچلاغ، کوئټې، مستنګ، مسلم باغ، ګلستان، کلا سيف الله، ګرد جنګل، ږوب، کاڼ مترزی، دېره جاتو شمالي برخي پوري سيميز بېلا بېل او مشترک بديل اسم (کوچنی) په عوض کې کاروي، چې د کوچني د نامه تر

عموميت را لاندي په بېلا بېلو لويځو سيمو کې بېلا بېل منطقوي لهجوي اصطلاحات ورته راوړل کېږي، چي (کوچنی، زنکی، زنی، چوری، نانی، ښکی او داسي نور ...) ئې د يادوني وړ دي. په يادو نومونو کې د (کوچني) کلمه چي د کندهارۍ لهجې اصلي اسم بلل کېږي په ژباړه کي د عربي ژبي (صغير) پر کلمه اطلاق کېږي، چي د انګليسي د (ميني) له اسم سره معناً هم مفهومه دئ، خو اصلي خبره داسي ده، چي د عربي او انګليسي ژبو په تحليلي او څېړنيزو ژبو په اړخونو کي کېدای سي تر تفکيک وروسته ډېر تغيرات را وړاندي کړي.

کېدای سي په پښتو کي د (ماشوم) کوچني د اسم څېړنه مو بر بله لاره بوزي، دا په دې معنی نه نوي چي د عربي ژبي ګرامر پر (۱۴) بابو متمرکز وي، ځکه چي عربي ګرامر (۱۴) خانه ئيز جدول څخه د باندي صورت نه نيسي. کله بيا يو توری اصلي ثلاثي و رباعي، خماسي او ... تر فعلي بابونو د باندي له اصلي تورو خلاف د علت په تورو په نوم يادېږي او په اضافي ضميمه سره کارول کېږي. دوی ورته د (حرف علت) نوم ورکوي، چي پخپل ځان کي د لفيف، اجوف او ناقص د ډولونو نومونه لري او هغه توری، چي په نااندول يا تصادفي ډول را پېښ سوی وي د (شاذ) او نادر نوم ورکوي.

د انګليسي ژبي ګرامر، چي مرکزي هستې ئې د هندو اروپايي، يوناني، فرانسوي او جرمني ژبو زېږمي بلل کېږي. موږ ئې ځکه نامنظم بولو، چي اندول ئې کال په کال د څېړنو وروستۍ لاسته را وړني نوی رنګ را وړي، چي واضح او روښانه بول نه سو پر وهلای. داسي د نورو يو سېلابه (شرقي اسيايي ژبو چينايي او

...لهجو) او ځو سېلابه ژبو ګرامري څېړنه، چې څېړل ئې د خبري مسير پر بله بيايي.

په کندهاري پښتو کښې د کوچني د نامه دوهم پړاو هم پر دوو برخو وېشل کېږي، چې دا مهال هم د پخوا په څېر پر ژبه اداء او په لیک دود کې کارول کېږي.

لومړي پړاو تې ځيني خلک (هماغه کوچنی) او دوهم پړاو تې (کشر) وايي، چې البته په کښته خواکې ور ته تنکی وايي. خبره چې د دې اسم په مفغن حالت پوري اړوند ده، چې اوس تر ډېره حده افغاني او پښتني بڼه اخلي يا په بله معنی ډېر خلګ په دې اند دي، چې د ماشوم کلمه خپله پښتو کلمه ده، دا د دوی خپل کار دئ؛ که ئې حقيقتاً اصلي ريښه پښتو ته منسوبه وي او يائې قصداً د پښتو د ځينو اصطلاحاتو خواته ئې مخه کړېده د دوی کار دئ، مونږ ئې په منطقي استدلال د (ماشوم) کلمې بنسټ ځکه غير پښتو بولو چې:

1. په نومونږي اسم کې د پښتو له اتو تورو (ټ، ډ، څ، ځ، ړ، ږ، ښ، ڼ) هم نه ښکاري.
2. د ماشوم کلمې د لومړي (ميم) څخه وروسته حرف (الف) چې د اول حرف علت يا حرکت لرونکو تورو څخه دئ، په دې سره نومونږي اسم ته دوه سېلابي حيثيت ورکول سوی دئ او دا د (الف) توری د نړی په هره لهجه کې سته.
3. د ماشوم په اسم کې د علت حرف (الف) موجوديت مصنوعي بڼه لري، چې په دې سره د پښتو د خاص توري استعمال نه پکښې تر سترګو کيږي.
4. د (الف) موجوديت په دې اسم کې د عربي ژبې له اصلي توري (عين) سره شباهت، ځکه پيدا کوي، چې په زيات استعمال سره دغه د (عين) توری په (الف) بدل سوی، چې له (مع) څخه د (ما) استعاريت ئې اخيستی دئ.
5. د ماشوم د اسم دريم توری، چې (شين) دئ په لفظي ډول سپک د نړی والو مشترک توری دئ، چې هڅو په هره ژبه کې اوړېدل کېدای سي.
6. د (شين) توری پر ژبه اسان او روان ويل کېدای سي.
7. د (شين) توری، چې پر ژبه اسانه ويل کېږي د ماشوم د اسم په استعمال کې د عربي د يوه بل اصلي حلقي غير علتي توري (ص) ځای ئې نيولی دئ.
٨. د ماشوم په اسم کې (ص) په عربي حروفو څرګند دئ، چې په حرفي حلقي تورو کې موجود دئ، په دې اړوند په فارسي (صرف مير) کې د عربي ژبې د قياسي فاعلي بابونو بېلا بېلو افعالو استعمال، استخراج او استکرار را ښيي، په لاندي بيت کې مشخص دي:

(حروف حلق شيش بودای نوري عينَ همزه، هاو، حاو، خاو، عين وغين)

په پورته بيت کښې د (ص) توری، چې معربيت ئې ثابت دئ او د دې توري څخه مخکي د (ع) موجوديت مونږ ته روښانه کوي. د دوي په موجوديت سره د (معصوم) اسم يا کلمه عربي صيغه يا لغت دئ.

په پښتو لهجه او ګړو دود کې د عربي ژبې حلقي توري تل په هغه اصلي شکل چې ثقلت لري او پښتانه ئې پخپله لهجه کې د قرآن کريم او نبوي احاديثو له تلاوت او لوستني پر ته د ثقلت نه مراعتونکي او

کاروونکي ئې هم نه دي، خو دا په دې معني نه ده، چې دوی ئې نسي ادا کولای، بلکې د ژبې سلاست یا روانوالی ئې د دې لامل دئ، چې د نورو په څانګړې ډول د اسماني ژبې (عربي) ثقیل او حلقي توري ځانته اسانه کوي، همدا اسانتیا ئې په لهجه کې تر ډېره د عربي د (ث) او (ص) توري په عامه مشترک توري (س) ادا کوي. پر ژبه باندې (صدیق) په سدیک، (عبدالرحمن) په ادرامان، (معنی) په مانا، (معلومات) په مالومات حتی (اهمیت) په امینت اړوي.

د مفغن سوي لغت (ماشوم) کلمه، چې د عربي ژبې (معصوم) لغت دئ (عین) او (همزه) په (الف) او (حا) په (ها) بدله سوې. د دغو بدلونو ثبوت موږ ته ښيي، چې د معصوم په صیغه کې د (عین) توری په (الف) اړول سوی او په دې سره د عربي ژبې د معصوم د صیغې (مع) په پښتو ژبه کې مفغن سوی، د (عین) توری ئې په (الف) بدل سوی، چې په دې سره اوس (مع) په (ما) ویل کېږي.

د دې اسم دوهمه برخه د (صوم) کلمه، چې یوه ډک سېلاب لرونکې کلمه ده او د (صاد) په کلمه راپیل کېږي. نوموړی توری د عربي ژبې له اصلي تورو څخه دئ، د خولې د مخرج په داخلي یا دننني برخه کې غوړشک یا غونډ ویل کېږي، چې د پښتو په لهجوي اړخ کې ئې ډېر د استعمال موارد د بشپړو ویلو په دود نه لري، ځکه نو د (شین) د حرف اسانه وینه ده، همداد (ص) توری په (ش) اوښتی دئ او پاته دوه حرفونه (واو او میم) ئې پرخپل حال پاته دي.

مجموعاً د ماشوم کلمه یا اسم له اصلي عربي حالته و مفغن سوي پښتو حالت ته اوښتي او اوس په ګړدود او لیکدود کې ماشوم کارول کېږي.

پایله: د یادې لنډې تحلیلي لیکنې پایله موږ ته دا څرګ په لاس راکوي: د ماشوم صیغه یا اسم چې اوس مهال په پښتني سیمو کې مروج او تقریباً تر ۸۰ % په زیاته سلنه کارول کېږي کوچني ته ویل کېږي دا اسم په پښتني نړۍ کې د هغه چا لپاره کارول کېږي، چې تر مراحقیت، بلوغ یا مړاني وهني د مرحلي څخه کښته وي.

د ماشوم کلمه، چې اوس په پښتو ژبه د بېلګې په توګه کارول کېږي اصلي آر او ریښه ئې د عربي ژبې له معصوم څخه جوړه سوې، مستعاره کلمه یا صیغه ده، چې په پښتو کې ورته کوچنی وایو له عربي د معصوم له حالت څخه په ماشوم مفغن ده. مطلب دا دئ، چې ماشوم د پښتو ژبې اصلي توری نه دئ، بلکې د هغه په عوض کې اصلي توری د (کوچني) توری دئ.

وړاندیز: په کار دا ده، چې په تدریسي نصاب، اکاډمیکو برخو او په ټولو هغو موارد و کې چې د ښوونځیو، مدارسو، پوهنتونونو، پوهنځیو، شخصي ښوو نیزو مراکزو او عامو ټولو ځایونو کې، چې همدا د ماشوم کلمه یا اصطلاح کارول کېږي (د کوچني) په کلمه بدله کړي او تر څو په ګړدود او لیکدود کښې مو د وس تر بریده د خپلې ژبې د اصطلاحاتو او کلماتو سانته کړې وي او د دې سره مو داسې کړی وي، چې خپله ژبه مو به میراث خلګو ته پرې ایښې وي.

جانباز

# د عشق مقام

دا چې د عشق لپاره کوم جامع او خاص تعریف نشته نو د مقام دا انتها معلومول ئې هم تر ډېره حده مشکل کار دئ، صوفي شاعر عبدالرحمان بابا د عشق د مقام په هکله داسي وايي:

عاشقي ده تره هغه مقامه پورته

چې د چا مقام په رنځ يا په رحت وي

بل ځای وايي:

درد و غم د عاشقۍ څه هومره نه دی

چې يې عقل د چا رسي و مقدار ته

يعني د هر حالت مقدار ئې د ذهن له دايرې نه وتلې خبره ده، ځکه تر زحمت، رحت، خفگان او خوشحالي دوا‌ړو ئې مقام لوړ دئ، دا چې په ژوندانه د خفگان او خوشحالۍ تر ټاکل شويو مقامو ئې مقام لوړ دئ، نو د دردونو ګالل ئې هم خورا سخت وي، خو عاشقان په دواړو حالتو کي راضي او ځان د عشق په اور سيځي، ځکه خو عبدالرحمان بابا وايي:

که د يار له لاسه اور په يار بلېږي

هغه اور و عشقانو ته ګلزار وي

معشوقه همېشه تر عاشق بهتره او ښکلې وي، ځکه خو عاشق د معشوق تابع او خپله کاميابي د ده او د ده د رضا په حاصلولو کي بولي؛ لکه: حميد بابا چې وايي:

عاشقي وايي و دې ته که غوږ کېږدې

چې د يار په رضا خپله رضا پرېږدې

هغه مه ګڼه مين محض خلاف کا

چې په خپله رضا ځي د ميني لاف کا

پورتني بيتونه حقيقي عشقي اړخ لري او له دې قاعدي سره سم، چې معشوق تر عاشق بهتر وي؛ د ځينو بيتونو ويلو او ليکلو ته بايد فکر و شي، ځکه ځيني داسي بيتونه شته چې د داسي قاعدو برعکس وي او له دې سره سم د پښتو مترادفات هم په خپل لږ څه تفاوت سره د کارونې لپاره ښه بيلا، بيل حالتونه او ځايونه لري، لکه:

عاشق د خدای ګنهګار نه دی

خدای چې مين شو پاک رسول يې پيدا کونا

ذکر شوې لندۍ د عاشق او معشوق د قاعدي برعکس او له ادبي پلوه غلط تعبير دی، له داسي تعبيرونو سره احتياط کول په کار دی.

د عشق په باره کې ببلا، ببل تعبيرونه او نظرونه موجود دي، چې په يوه مقاله او رساله کې ئې راوړل نا ممکن کار دی، د عشق په مقام کې خپل ځان محوه کول خورا مهمه ځانګړنه ده، ځکه خو وايي:

خودي ليري کړه له زړه که عاشقي کړې
نشته بې له دې زواله بل کمال

دا چې د دې عشق څخه مطلب د الله تعالى رضاء او له هغه سره مينه ده، نو ځکه ورته حقيقي عشق وايي، په عشق کې فکر او احتياط کول تر ټولو مهمه خبره ده لکه څنګه چې رحمان بابا وايي:

عشقان دي ستر ګي روني کا په عشق کې
دا خوب نه دی دا منزل دی د سېلاب

ځکه چې عشق د خوب او پټو سترګو کار نه دئ، بلکې د يو سيلاب منزل دئ، چې بايد په ډېره پوهه او تدبير سره تر سره شي، نن سبا په ټولنه کې مجازي عشق هم تش په نامه د نفس او هوس په غوښتنه دومره عام شوی، چې خلګ د عشق نوم لا نه شي اخستلای او حال دا چې ځيني خو ببخي د عشق په کلمه لا نقد لري خو دا چې په صوفيانه ادب کې نفس د انسان د خواهشاتو په منفي معنی استعماليږي او دغيري اخلاقي خويونو سرچينه ده، نو عبدالرحمان بابا عشق له همدې شي څخه جلا کوي او دې حقيقت ته ئې داسې اشاره کړې:

عشق د نفس له خاصيته منزه دی
کار د سترګو به څوک څر نګه په دهان کا

په پورته بيت کې تصوفي شاعر عبدالرحمن بابا د نفس او هوس غوښتني په عشق کې نه مني او دې ته عشق نه وايي، ځکه چې هوس او مينه يو له بله سره توپير لري او هغه کسان چې د عشق پر کلمه نيوکه لري او د عشق منشاء د عقل او زړه څخه ور ها خوا شهوت ګڼي مجازي عشق ته متوجه شوي دي، چې د حقيقي عشق سره ډېر توپير لري، د عشق کلمه نظر خپلو نور مترادفاتو ته خاصه او مشخصه کلمه ده، چې په خاص ډول سره کاريږي نه په عام، د عشق کار له زړه سره وي ځکه خو پکښې ځيني ممکن، ناممکن او ځيني ناممکن پکښې ممکن کېدلی شي، څه چې زړه ومني بيا يې د عقل دايرې نسي تغيرولای، دې حقيقت ته عبدالرحمن بابا او خوشحال خټک داسې اشاره کړې:

عشق او عقل دواړه سره ضد دي که پوهېږې
کله کړي ارام داور بخري په لمبو کې

عقل سل د مصلحت بندونه جوړ کړه
چې د عشق سيلاب پرې راشي واړه نوړ کړه

د عشق په مقام کې ماديات او معنويات هر څوک خپلې عقيدې او کلتور ته په کتو سره پرتله کوي، چې د معنوياتو برخه ئې تر مادياتو در نه بريښي.

يو وخت همدې ته په موکې سره مې د رسنيو د لارې دا خبر واوريدو، چې (جاپانی شهزادګی د يو داسې زلمي سره، چې عادي وګړی دی، د مينې لپاره شاهي کورنۍ پرېږدي) دغه شهزادګۍ ۲۵ کلنه ماکو د جاپان د امپراتور اکيهتو مشره لمسۍ وه، چې په ټوکيو پوهنتون کې له کومورو نومي ځوان سره اشنا شوه، چې تر ليدو وروسته له هغه سره واده کولو ته تياره شوه، د

جاپان د شاهي قوانینو له مخي که نجلۍ ئې له کورنۍ بهر واده کوي باید شاهي کورنۍ پرېږدي.

رښتیا هم چاته به په مینه کي مادیات مهم وي چاته معنویات، خو په مینه کي معنویات ځکه تر مادیاتو زورور دي، چي مادیات له منځه تلونکي خو معنویات بیا هیڅ وخت نه ختمیږي، د جاپان ذکر شوې شهزادګۍ ته مینه نه بلکي مینه مهمه وه، نو ځکه ئې معنویاتو ته تر مادیاتو ترجیع ورکوله او د شاهي مانۍ پرېښول ئې غوره بلل، دا ځکه چي د دې په لاشعور کي د جوړي شوې طرحي او خیال تمرکز پر نوموړي ځوان باندي وو، نه پر شاهي مانۍ، نو کله چي د خپل لاشعور د طرحي او خیال سره سم د یو ځوان سره مخ شوه، سم دستي پر مینه شوه او د خپل اینده ژوند تصمیم ئې ونیو.

په پښتني کلتور او فلکور ادب کي هم د شهزاده ګانو تر مادیاتو د شهزاده معنویات (خویونه، خاصیتونه او خصلتونه) مهم بلل شوي دي، چي د پښتو شفاهي ادب د غه لنډۍ ئې ژوندی مثال دئ:

مینه دي ورځ په ورځ زیاتېږي

یا شهزده یې یا دي کوډي کړې دینه[۱۲]

په پورته لنډۍ کي د میني د زیاتېدو لامل د شهزاده معنویات (خویونه او عادت) تصور کېدای شي، نه د هغه مال او دارایي.

دلته مهمه نه ده چي دا شهزدګۍ پښتنه وه، که یا، مسلمانه ده، که یا بلکي مهمه دا ده، چي د هر انسان په لاشعور کي په فطري ډول داسي طرحي موجودي وي، چي زموږ په دین کی هم د دې طرحي مطابق لټون شرعي اصل کېدای شي، خو په همدې برخه د محیط اغېزه هم باید له یاده و نه باسو.

غنایي زنده ګي د ژوند خوند شو چنده زیاتوي.

**عبدالظاهر ځرک**

**زه او غروب**

دافـــق دلړمانـــــه ځــــــه
د شـــــفق وینـــــی بهـــېږي
دلوېــــدیځ ومیخـــــانې تــــــه
دغــــروب شـــراب تــــوئېږي

دســــاحل پر غـــــاړه باندي
منتظـــــــره شــــــاپېرۍ ده
دبـــاڼ خو پــــه ســـره غــوټی یـــې
طلایــــــي زلفـــــي ځلېـــږي

ګـــردي لمـــر لمــــن کـــړه ټوله
د ختــیځ دغـــرولـــــه ســــره
نـــا آرامــــه ښـــکلی پېغلــــه
خپـــل مــــین پســــي ستــــېږي

ځــــه ښــــکلا دطبیعـــت تــــه
ســـر چینــــه دالهامـــاتو
د شـــاعر مــــایوســـی ســـترګی
پــــه ســـپوږمۍ بانـــدي لګیـــږي

۱۳۵۵ ش

---

[۱۲] په ډیرو پښتني سیمو کي د شهزاده اصطلاح د هغه چا لپاره کارېږي، چي ښه خویونه او ښې خانګړني ولري، مثال:
وی پلانی ډېره شهزده انسان دی!

ژباړه: سعيد لودين/ کاناډا

# په ارواپوهنه کې د ډاکتر البرټ بنډورا تجربه



دا تجربه د (۱۹۶۱-۱۹۶۳م.) کلونو په دوران کې په ستېنډر فورډ پوهنتون کې تر سره سوه. د دې تجربې جزئيات په لاندي ډول دي:

د (۱۹۶۰م.)کال په اوايلو کې يو لوی بحث پيل سو. دا بحث په دې اړه وو، چې څنګه ټولنيز عوامل، اجتماعي اخلاق او جنيتکي عوامل د کوچنيانو پر ودې او نمو باندي اغېز ښندي. دا بحث تر اوسه هم ژوندی دئ او اکثره وخت د (طبيعت؛ د طبعي بحث په مقابل کې) تر عنوان لاندي مطرح کېږي. ډاکتر البرټ بنډورا د بوبو په نامه ناوکۍ باندي د تجربې په ترسره کولو سره غوښتل دا ثابته کړي، چې د انسانانو رويه تر ډېره، پر اجتماعي تقليد ولاړه ده، نه پر جنتيکي عواملو.

البرټ بنډورا دا تجربه پر څو کوچنيانو تر سره کړه او په دې تجربه کې برخه اخيستونکي کوچنيان نجوني او هلکان ئې پر دوو، دوو ګروپونو ووېشل. اول ګروپ ته ئې داسي يوه ويډيو ورښکاره کړل، چې په هغه کښې يو بالغ شخص د بوبو ناوکۍ سره زيشت چلند کوي. ناوکۍ په سوکانو او لغتو وهي او په آخيره کې ئې د مځکي راولي. دوهم ګروپ کوچنيانو ته ئې بيا داسي يوه ويډيو ورښکاره کړل، چې يو آرام شخص د بوبو په ناوکۍ بازۍ کوي. وروسته ئې دواړه ګروپونه جلا، جلا خونو ته واستول او هغه ناوکۍ پکښې وې چې دوی په ويډيو کې ليدلي وې.

هغه څه چې له دې تجربې څخه تر لاسه سوه، دا ول:



د هغه ګروپ کوچنیان چې د زیښت چلند ویډیو لیدلې وه، ډېرو ئې په خپله هم د بوبو ناوکۍ سره زیښت چلند وکړ او د دوهم ګروپ کوچنیانو چې ناوکۍ ئې په ښه حالت کې لیدلې وه، له ناوکۍ سره نسبتا سم چلند وکړ، نسبت بل ګروپ. د هلکانو په ګروپ کې د تیري او تجاوز (۳۸،۲) پېښې ثبت سولې او د نجونو په ګروپ کې (۱۲،۷) پېښې ثبت سولې.

په دې تجربه دا څرګنده سول، هغه کوچنیو هلکانو چې په ویډیو کې د نارینه زیښت چلند لیدلی وو، تر هغو هلکانو ډېر متجاوز ول کومو چې په ویډیو کې ښځه د بوبو ناوکۍ سره پر زیښت چلند لیدلې وه. په هغو کوچنیو هلکانو کې چې په ویډیو کې ئې نارینه لیدلی وو، د تېري او تجاوز د پېښو اوسط ئې (۱۰،۴) وو او کومو کوچنیو هلکانو چې په ویډیو کې ښځه لیدلې وه، د تېري او تجاوز د پېښو اوسط ئې (۴۸،۴) ثبت سوی وو. په همدې ډول د نجونو په ګروپ کې هم همدا حال وو. د کوچنیو نجونو په ګروپ کې چې په ویډیو کې ئې ښځه په زیښت چلند کې لیدلې وه، د تېري او تجاوز اوسط (۵۷،۷) وو او هغو نجونو چې په ویډیو کې ئې نارینه تجاوز کوونکی لیدلی وو، د تېري او تجاوز اوسط ئې (۳۶،۳) وو.

د ډاکټر بنډورا له دغې تجربې څخه دا حدث او نظریه هم په ښه ډول روښانه سوه، چې وایي پر هلکانو د نارینه ووکړني او پر نجونو د ښځو کړني ډېري قوي اغېزې لري. په پښتنو کې یو متل دئ، چې له دې نظریې سره ډېر سر خوري، وایي چې:

چې ابا هغسې ئې کبا، چې ادې هغسې ئې پایڅې.



# د کابل پېغله

(۲۲)

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي

ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمدواصفي/کاناډ

**د حُسن طلبګار:** د شور بازار حضرت خورا ډېر خوشحاله وو؛ دا ځکه چې وحشي، بې رحمه او خورا ظالم بچه سقاو ئې د خپلو لنډ غرو سره پر هیواد واکمن کړی وو. د ده هلي ځلي او سازش اوس بری ګټلی وو او حواریونو ئې د نورو پر غم سندری ویلې. څه ناڅه دوې اوونۍ وروسته یو نسبي امنیت راغی او خلک د پټن ځایونو څخه لږ ـ لږ راوتل او خپلو کورونو ته تلل او پکښې اوسېدل.

بازارونه خلاص سوي وه. کوم څه چې د لوټ او تالان څخه بچ سوي وه سوکه ـ سوکه ئې رانیول او خرڅول پیل سوي وه، خو بچه سقاو پر دکاندارانو باندي دونه ستره مالیه وضع کړه، چې ملاوي ئې ورماتولې، علت ئې دا وو، چې د بهر سره تړلی لاري د لوټ تالان له امله سپیره پاته وې، نو ځکه د بهر څخه مال نه راتی. د کابل په بازارونو او مارکېټونو کي اول خو اجناس ډېر لږ سوي وه، دوهم دا چې د درنې مالیې تر پیټي لاندی وه، درېیم دا چې رانیول (تقاضاء) خورا ډېره وه چې له امله ئې هر جنس خورا ګران خرڅېدئ، بل دا چې د کابل اوسېدونکو پیسې هم له لاسه ورکړي وې، ځکه چې ټول زر او پیسې دغو وحشي غلو ترې لوټ کړي وه. دا چې هر جنس ډېر ګران سوی وو، نو خلک له لوږي مړه کېدل. د کابل هغه ټوله خوښي او سوکالي چې په لسو کالو کي ګټل سوې وه، دغو څو ورځو غلاوو او شکوونو په مفلیسۍ بدله کړې وه، خلکو په ډېر غم او حسرت سره ورځي او شپې تېرولې.

د شور بازار حضرت د بچه سقاو تر واکمن کولو پنځلس ورځي وروسته بهرني ملایان او پیران راوغوښتل او یوه شورا ئې جوړه کړه، کله چې هغوی ټوله راورسېدل نو یوه شپه د ده په ماڼۍ کي راغونډ سول، د شور بازار حضرت هغوی ته په وینا کي وویل: «د هیواد او ولس خیر غوښتونکو! د خدای شکر او احسان دی، چې موږ په خپل کوښښ کي بریمن سوو، کافر امان الله خان او ملحد عنایت الله خان دواړه د کابل څخه وشړل سول، د کابل ټاټوبی د نااهله کافرانو له شتون څخه پاک سو، بچه سقاو پاچا کړای سوی دی، که څه هم ده او د ده ملګرو په کابل کي یو څه ظلمونه کړي دي، خو اوس امنیت ټینګ سوی دی، ما بچه سقاو ازمایلی دی، هغه د پاچهۍ لیاقت نلري،

جاهل او بد مزاجه انسان دی، پر شاهي فرمانونو او نورو احکامو باندي د ګوتي په لګولو سره دا ترې ثابتیږي، چي لاسلیک ئې نه دی زده، هغه خورا عیاش هم دی، ښایسته او مهمي ښځي شاهي ماڼۍ ته ورغواړي او عزت ئې لوټوي، نو بهرنۍ نړۍ که دا خبري واوري حتماً به پر موږ علماوو باندي تور وتړي، حال دا چي موږ دغسي الزام نسو زغملای، نو په داسي حالتو کي باید څه وکړو او کومه لاره غوره کړو؟.»

یو سپین ږیري مولوي وویل: تر اوسه خو لا د بچه سقاو حکومت نه دی ټینګ سوی، نو کولای سو چي دی هم نسکور کړو.

حضرت: هو! بالکل، مګر څوک به پاچا کړو؟

هماغه مولوي: نادر خان مناسب انتخاب دی.

حضرت: زه خبر سوی یم چي هغه د پاریس څخه را روان سوی دی، لومړی به هندوستان ته ورسیږي او بیا به افغانستان ته راځي.

یو بل مولوي: نو بیا څه تشویش دی، پریږدئ، چي راورسیږي.

یو بل پیر: اندیښنه خو دا ده چي د کابل خبرونو هندوستاني مسلمانان ناآرامه کړي دي، ټوله هندي اخبارونه پر ملایانو او پیرانو بد وایي، ښېره دا ده چي نادر خان د هغوی د فریادونو له امله د کابل پر ځای کندهار ته ولاړ نسي.

حضرت: هغه داسي حماقت نه کوي. له دې درکه تاسي معززین بېغمه اوسی، که ټوله دنیا هم ورته ووایي او پوه ئې کړي بیا به هم هغه کندهار ته ولاړ نسي.

لومړی مولوي: چي داسي ده، نو هیڅ تشویش نسته.

حضرت: خو زه له یو شي ډاریږم.

هغه بل مولوي: له څه شي څخه؟

حضرت: ښېره دا ده، چي د کندهار او سپېدونکي، غلجیان، مهمند او اپریدیان د امان الله خان پلویان سوي دي، زه خبر سوی یم چي امان الله خان په دوو هفتو کي د ېرش زره پوځیان راغونډ کړي دي، هغه اوس مخ پر وړاندي د راتګ چمتوینه نیسي، بچه سقاو د دونه لوی پوځ سره ډغري نسي وهلای.

لومړنی پیر: دا کومه خطرناکه خبره نه ده، ځکه چي په غلجیو کي ستاسي محترم ورور آغا شېر خورا ډېر نفوذ او رسوخ لري، هغه کولای سي چي د دې قومونو مشران وپوهوي تر څو د امان الله خان پر خلاف ودریږي.

حضرت: زه هم همدا اراده لرم چي آغا شېر ته یو ایلچي (قاصد) ولېږم او هغه متوجه کړم چي غلجیان د امان الله خان څخه را جدا کړي.

یو بل پیر: کله چي غلجیان د امان الله خان څخه را بېل سي نو مهمند او اپریدیان به پخپله د هغه ملګرتوب پریږدي، تاسي همدا اوس آغا شیر ته خط ولیکئ او یو قاصد ور ولېږئ.

حضرت: سمه ده.

حضرت هم خپل مشر ورور آغا شیر ته یو خط ولیکی، چي ټولو ته ئې ولوست او ټولو خوښ کړ، د شور بازار حضرت کندهار ته د یو قاصد تر لېږلو وروسته داسي وویل: د یو تشویش څخه خو بېغمه سوو، زه یقین لرم چي آغا شېر به هلته کار سم کړي، خو همدا اوس یو بل افعي مار لا پاته دی، چي د هغه سر هم باید خوږین سي.

یو اوږده ږیره لرونکي مولوي پر خپله ږیره لاس تېر کړ، سر یې را پورته کړ او د شور بازار د حضرت څخه یې وپوښتل: دا افعي مار بیا څوک دئ؟

حضرت: د شاهي کهول یو غړی (علی احمد جان) دئ.

درویش ملا: والله هغه هم تر امان الله خان کم نه دی، د هغه سر هم باید چختان سي.

حضرت: نو د هغه د ځپلو لپاره څه وړاندیز لرئ؟

لومړنی مولوي: د نادر خان تر راتګ پوري د بچه سقاو څخه باید یو ګوډاګی جوړ سي. همدی پر علي احمد جان باندي د پوځي برید لپاره چمتو کړئ.

یو پیر: علي احمد جان په خپل سر کي د پاچهۍ هوس لري، هغه د شینوارو قومي مشران خپل پلویان کړي دي، که شینواري د هغه څخه را بیل کړو نو دی به یا وژل کیږي او یا به تښتي.

محمد صادق: دا په ما اړه لري، شینواري به زه د علي احمد جان څخه راواړوم.

حضرت: ښه! ته د هغه څخه د شینوارو د رابېلولو کوښښ وکړه او زه به بچه سقاو پر هغه باندي حملې ته وپاروم.

محمد صادق: زه به نه یوازي هغوی ترې بېل کړم، بلکې پر ده باندي به ئې حملې ته هم ترغیب کړم.

حضرت: که همداسي وسي، نو علي احمد جان به له شکه پرته وژل کیږي.

محمد صادق: زه به سبا سهار ډکې ته روان سم.

حضرت: او زه به هم سبا سهار بچه سقاو پر هغه باندي یرغل ته ولمسوم.

یو پیر: که جنرال نادر خان راسي نو هغه به مستقیماً کابل ته څنګه راځي؟

حضرت: هغه به ګردیز ته راځي او هلته به تم کیږي.

دوهم پیر: سمه ده، هغه ځای بالکل مناسب دئ.

حضرت: ښه! اوس خو مشوره وسوه، ټوله معززین دمه وکړئ، سبا سهار به طرح سوي وړاندیزونه عملي کړو.

ټوله خلک ولاړ سول او د خپلي استوګني ځای ته روان سول، د شور بازار حضرت هم بیده سو، دی سهار ډېر وختي راویښ سو. تر رفع حاجت او اودس تازه کولو وروسته یې لمونځ وکړ او بیا شاهي ماڼۍ ته د بچه سقاو سره د لیدو لپاره ورغی.

بچه سقاو پر تخت باندي د کښېناستلو وروسته ځان ته د اعلیحضرت حبیب الله خان لقب غوره کړی وو. څنګه چې هغه مطلق جاهل وو او همدغسي جاهلان پر را ګرځېدلي وه، نو د خپل جهالت له امله ئې د اعلیحضرت غازي حبیب الله خان د نوم سره (د خدای پیغمبر) کلمات هم اضافه کړ، ګواکي اوس نو د ده نوم (اعلیحضرت غازي حبیب الله خان پیغمبر خدا) وو.

بچه سقاو دونه جاهل او وحشي وچې د (پیغمبر خدا) په معنی هم نه پوهېدی، د ده د دې لقب په اختیارولو سره کوم مولوي یا پیر هیڅ اعتراض هم ونکړ.

له کله چې بچه سقاو پاچا کړای سو له هماغه شېبې ئې په دماغ کی همدا یو خیال وو، چې ښه عیش او عشرت وکړي، له همدې امله ئې تر ټولو زیاتي ښځینه دلالاني په کابل کي خوشي کړي وې، چې که کومه ښایسته پېغله او ښځه ووینې، نو د هغې اطلاع بچه سقاو یا د ده حوارینو ته ورکړي، هغوی به هم ښله ځنډه دغسي پېغله یا ښځه په زوره یا تېښته سره یووړه. په دې ډول د ښکلو ښځو او نجونو د نومونو لیست لیکل کېدئ.

که څه هم بچه سقاو په فحاشیو کې ډوب وو، خو د دې سره ـ سره ئې حُسن جهانه هېره نه وه. د حسن جهاني مینې د ده په زړه کې ټینګ ځای نیولی وو، ده به ډېر خله هغه یادوله، همدا مهال هم د هغې په فکر او سوچونو کې ډوب وو.

لمر راختلی وو او ژړې وړانګې ئې د کړکیو څخه دننه خونې ته رالوېدلې وې، د ده تر څنګ ئې درې جنرالان یعنې یعقوب، محمد صدیق او سیدو حسن ناست وه. سیدوحسن چې دی په سوچونو کې ډوب ولیدی، نو رغ ئې پر وکړ، چې اعلیحضرت د خدای پیغمبره! نن ولي داسي مغموم او فکرجن یاست؟

بچه سقاو سر راپورته کړ سیدوحسن ته ئې په کتلو سره یو سوړ اسویلی وکیښ او وې ویل: سیدوحسنه! حُسن جهانه مې په فکر کې دوري هوري کیږي، که څه هم زما په مانۍ کې دافغانستان ښایسته او سپیني نجوني موجودي دي، خو هغوی ټولي د شاپیرۍ غوندي حسن جهاني په وړاندی هیڅ هم نه دي، زما زړه ور جنراله! زه د حسن جهاني څخه پرته ژوند نسم کولای.

سیدوحسن: عالي جنابه! ما چې د حسن جهانی په باره کې پلټنه وکړه، راته معلومه سوه چې هغه د ۱۹۲۹ د جنورۍ پر اتلسمه د خپل پلار شېرخان سره په شپه کې یوې خوا ته تللې ده.

بچه سقاو: کاشکې یو چا هغه راګرځولې وای.

سیدوحسن: د هغې د راګرځولو کوښښ سوی وو، خو ارشد هم د هغوی سره ملګری وو ارشد زموږ څلور ملګري ویشتلي او وژلي هم دي او پنځم ئې ټپلی دی او پخپله تللی دئ.

بچه سقاو: دا زما د ملګرو بې غیرتي ده، چې د مکتب یو شاګرد هغوی ووژل، په خدای چې ډېر ښه یې وکړه، دغسی بې غیرتان باید وژل سوي وای، نامرده وه چې ووژل سول، لاکن سیدوحسنه! اوس به هغه د حوري غوندي حسن جهانه څنګه تر لاسه کړم؟

سیدوحسن: په ظاهره خو د هغې د موندلو امید نسته.

بچه سقاو: واوره! هر چا که حسن جهانه پیدا کړه او ما ته ئې راوستله، نو هغه سړی به خپل صدراعظم کړم.

یعقوب وویل: آیا تاسي پر خپله دغه خبره ولاړ یاست او اقرار کوئ؟

بچه سقاو احساساتي سو او وې ویل: زه په خدای قسم کوم چې همداسي به وکړم.

یعقوب: چې داسي ده نو زه د هغې په میندلو او نیولو پسي ځم.

بچه سقاو: ورځه! د خدای لپاره ورځه! دغه د ځوارلسمي سپوږمۍ، د ښکلا ملکه او د افغانستان بې مثاله ښایسته او د نړۍ حوره راته راوله، کله چې هغه راولې نو د هماغه ورځې څخه زما صدراعظم یې.

یعقوب هم ولاړ سو او داسې وویل: دا دی زه ورپسي ځم، یا بې درته راولم او یا به....

بچه سقاو یې خبره غوڅه کړه او وې ویل: د بد شګونۍ الفاظ د خولې څخه مه راباسه، زه متیقین یم چې ته به هغه ضرور راولې.

یعقوب ولاړ سو او د خوني څخه ووت، سیدوحسن یو کاغذ بچه سقاو ته وړاندي کړ او ورته وې ویل: د پوځي مصارفو بل دی، لاسلیک یې کړئ.

بچه سقاو په خندا ورته وویل چې زه په بل مِل نه پوهېږم، راوړه چې ګوته پر ولګوم.

ده فوراً پر همدې کاغذ باندي ګوته ولګوله او سیدوحسن هم هغه کاغذ وپېچی او په جیب کې واچوی.

بچه سقاو غوښته چي یو څه وواییي چي د شور بازار حضرت خونې ته راننوت، د حضرت په لیدلو سره بچه سقاو او د هغه دواړه جنرالان ودرېدل، حضرت مخې ته راغی او په خندا یې وویل: اعلیحضرت ته، السلام علیکم!

بچه سقاو په خندا ورته وویل: تاسي خوشحاله معلومېږی.

حضرت: هو ډېر خوښ یم، خو تر اوسه مې لا خوښي بشپړ سوې نه ده.

بچه سقاو: ولي؟

حضرت: اوس –اوس خو دوه نور خطرونه لا پاته دي.

بچه سقاو: هغوی څوک دي؟

حضرت: لومړی امان الله خان دی او دوهم علي احمد جان دئ.

بچه سقاو: چي داسي ده، نو څه باید ورسره وکړو؟

حضرت: د امان الله خان لپاره ما ترتیبات نیولي دي، تاسي ته به معلومه وي، چي د امان الله خان سره دا مهال غلجي، مهمند او اپریدي قبایل ولاړ دي، په دوی کي غلجیان په شمېر خورا ډېر دي، خو هغوی اکثریت زما د مشر ورور اغا شېر مریدان دي، ما تېره شپه یو قاصد اغا شېر ته ولېږی او هغه ته مي هدایت کړی دئ، چي دی باید غلجیان د امان الله خان سره د مرستی او ملاتړ څخه منع کړي، یقین دئ، چي هغه به ئې را وګرځوي، مهمند او اپریدیان چي دا کار ووینې نو هغوی به هم پخپله د هغه له ملاتړه پر شا سي، خو یوازي د علي احمد جان له خوا اندېښمن یو.

بچه سقاو: د تشویش خبره نسته، پر علي احمد جان به زه حمله وکړم.

حضرت: هو! باید چي حمله پر وسي، که تا هغه مات کړ، نو په ډاډه زړه پر هیواد باندي واک چلوه.

بچه سقاو: زه به همدا نن ډکي ته پوځیان سوق کړم.

حضرت: بس همدا عملیات اجرا کړه، نور هیڅ اندېښنه نسته.

بچه سقاو سیدوحسن ته مخ واړاوه او داسي ئې ورته وویل: سیدوحسنه! همدا نن پوځ تیار کړه او مخ پر ډکه ئې سوق کړه.

سیدوحسن: ډېر ښه! اې د خدای پیغمبره.

سیدوحسن هم د خونې څخه دباندی ووت، د شور بازار حضرت دا مهال بچه سقاو ته وویل: زه د اعلیحضرت حضور ته د یو عرض وړاندي کول غواړم.

بچه سقاو: وې وایاست.

حضرت: تاسي لطفاً د حُسن او ښکلاوو غلامه کوئ، له دې څخه په خلکو کي د ظلم نښي راښکاره کیږي.

بچه سقاو: زما په مانۍ کي همدا اوس دونه ښایسته ښځي راغونډي سوي دي، چي نوري هیڅ نه ځاییږي، له همدې امله مي د نورو ښځو د راوستلو څخه ډډه کړې ده، څنګه چي زما ښایسته ښځي ډېري خوښېږی نو د یو لیست په جوړولو لګیا یم تر څو معلومه کړم چي په کابل کي څونه ښایسته ښځي سته او چیري اوسېږي.

حضرت: که د یو څو ورځو لپاره خپل دغه لیست وځنډوی نو ښه به وي.

بچه سقاو: چي داسي ده نو و به ئې ځنډوم.

نور نو د شور بازار حضرت رخصت واخیست او روان سو، بچه سقاو هم د محمد صدیق په ملګرتیا د عیش او عشرت خونې ته روان سو.

راتلونکي برخه: د کابل ېېغله په ګیره کي...

# عبدالظاهر ځرک ته د عبدالهادي ريشا ليک

پرماگران عبدالظاهر جان ته سلامونه وايم.

د پاک رب څخه ډېر عمر، سلامتيا او ښادۍ ورته غواړم.

محترم ظاهر جانه! تاو ماته په خپل ۱۳۷۷/۱/۶ رالېږلي ليک کي ډېره درنه او خوراً لوه وظيفه را تر غاړه کړه، چي زه بايد تاته د مرحوم مغفور شيخ صاحب خبره، قول يا خاطره وليکم.

زه دامنم چي ما د مرحوم شيخ صاحب سره پر يوه کاسه، يوه دسترخوان او يوه اطاق کي وخت تېر کړی دی او ناستي ولاړي مو کلونه په برکي نيولي دي.

په دغه او قاتوکي ډېر مجلسونه، ډېري خبري، افکار، نظريات به ولي زموږ تر ميانځ نه وي رد و بدل سوي حتما سوي دي، مگر دانو بيا ته را سره ومنه، چي په تاسف سره بايد ووايم چي زه اوس د هيري په ټکه اخته يم حافظه ياري نه را سره کوي د هغه وخت خبري څه چي د ماښام خبره مي لا نه يې پياد.

ما چي هر څونه پر ذهن فشار راوست داسي خبري نه را يادېږي چي زه اوته دي دواړه په قانع سو، خو بيا دي هم خبره پرمځکه نه اچوم څه ـ څه چي ياد ته را ځي هغه به درته وليکم، نور يادونه زماله مغزو رژيدلي دي، سد مي کوره دئ. دا څوکرښي چي ليکم په هيڅ صورت به د مرحوم شيخ صاحب د شخصيت جواب گوی نه وي.

د شيخ صاحب علمي ويناوي او ادبي جملي نه زما ژبه ويلای سي، نه ئې د قلم ژبه ليکلای سي، خو دادی زړه راغونډوم هغه څه ليکم چي په ذهن کي پاته دي ...زه چي په کابل کي د حاجي عبدالقاهر او حاجي عبدالحي نماينده وم، د کندهار سوداگرو د حکومت سره يوه مالياتي دعوه درلوده او د دی دعوی د پاره ئې شيخ صاحب خپل وکيل تاکلی وو او کابل ته ئې راستولی وو، نو حاجي عبدالحي وماته سپارښت وکی، چي شيخ صاحب به درسي، هورې به په اطاق کي هم ستاسره وي، چي ته به ئې عزت داري کوي او خيال به ئې ساتې.

دا دی چي شيخ صاحب محترم په اطاق را ننوت الغه مي ولوېده ځکه دا زما لمړی ديد وو. دځانه سره مي وويل چي زه به د دې درانه شخص خدمت څنگه وکم او زه و دی خو په طبيعت کي سره ليري يو څنگه به سره وچليږو، د داسي درانه شخص رضائيت حاصلول هم درنه خبره ده، خو چي دوی ورځي لا نه وې تېري سوي. شيخ صاحب پدل را سره مات کی را سره آگويه سوا و مائې لوړ خيال و مقام ته د حرمت گونده ووهل. تر مشر ورور، ترشيرين اشنا، تر يوښه ملگري را تېر سوا و وړ مو سره وتل. آخر ئې زه په صحبت نه مړېدم او د هغه غذا وو، چي به ده په ډېر هنر پخولی بيا به مو سره خوړلې، د هغو غذاوو په خوند او لذت هم نه مړېدم.

د ده کرار ـ کرار خوراک، په خوند ـ خوند خوراک ماته هم خوند راکاوه، مگر ما په هغه سي کراری خوراک نسوای کولای. ما په اپيللو خوراک کاوه، د ده د عوې څه وخت ونيوی، سهار به صدارت ته ورتلی دعوه به ئې شړل غرمه به دلمانځه پروخت اطاق ته راغلی، چي کله به ناوخته سو زما به په کاهښت وو او راتگ ته مي تلوسه وه.

هغه وو چې دعوه ئې وګټل، کار ئې خلاص سو، بستر ئې مخ پر کندهار وتاړه، دتګ په وخت کې و ماته نامیندي ودرېدله یوځه رقت راته پېښ سو، ترموټره پوري ورسره ولاړم، موټر چې حرکت وکی لاس ئې راته وښوروه زماله ستر ګو دوی دانې اوښکي را ایله سوې، ځړېدلی مغزی اطاق ته راغلم.

دکندهار دخوا ئې و ماته یو خورا دلچسپ خط را ولېږی، خط نه وو، چې خط وو. دادب دخوا څخه مالامال. دخپل اقامت د وختو په جویا نو او ظرافتو پُر و پیمانه، مطلب خورا هر اړخیزه او ښکلی لیک وو، خو اخ! چې ولي ما هغه خط د نورو ښشمېره خطي پاڼو سره ګډ ایښی وو، چې اوس ئې بولګه لا نسته، ډېر مي د زړه داغ دئ، چې ولي ما دغه نادر او په زړه پوري خط ټینګ نه وو ساتلی، چې اوس مي د ګوتو وتلی دی او راڅخه ورک دئ، دلیک ټوله مضمون، جملې ئې زما دیاده وتلي دي یوائې دلیک رڼا ښایست، ځل وبل کېدل ئې زما په ذهن کي پاته دي اوبس.

... هغه لیک زما دپاره افتخار، په ادبي جملو بار درونـد خط وو، نن ورځ زما څخه هغه درونـد خط نسته، نو تر ما سپک هم نسته چې د ساتلو ئې نه وم خو د مرحوم د قلـم قـوت دعلـم و ادب جـوهر ئې پکښـي نمایان وو.

ظاهر جانه! ستا په زړه کي به ضرور درګرزي چې ته خو ئې یو پریګراف راته ووا یه خد ښکه مي شي لا پیاد دي، د ډېر عمر خبره ده، تقریبا د پنځوس کلو خبره ده رشیا ده چې وایي ( نعمت پس له زواله معلومیږي.)

... بل وخت چې بیا زه د شرکت وطن او دوړیو دا ودلو د فابریکې نماینده سوم په کابل کي، دکندهار خلګو مرحوم شیخ صاحب خپل منتخب نماینده د پارلمان و اولسي جرګې ته معرفي کړی او کابل ته را غلی او په نمایندګی کي راسره میشته سو بیا موږ سره یوځای وو. دلته به د افغانستان د مختلفو ولایاتو وکیلان راتلل او پرده به راټولېدل. البته هغه ولیلان چې مفکورې ئې سره مشترکي وې.

دغه د یوې مفکورې وکیلان په اولسي جرګه کي مخالف ګروپ وو، چې سره کښېنستل او خپل نظریات به ئې سره ویل، پېشنهادات به ئې جوړول. اکثره به د ده نظر تائید سو او په مجلس کي به مخ وده ته ور اوښتی هره فیصله چې به دوی دلته سره پاس کړه پرهغه موضوع او فیصله به ئې سهار به شورا کي خبري کولې، تلاښ به ئې کاوه چې د دوی طرح سوی پیشنهاد په عمومي مجلس کي ومنل سي او تصویب سي.

خبره داده، چې د افغانستان د مختلفو قومو، طبقاتو، وکیلانو وجناب شیخ صاحب ته عقیده او احترام درلود، د ده علم، پوهي او فضیلت در ناوی ئې کاوه او نظر به ئې څني غوښت.

د دولت دا ډول مخالفي ټولني نه وې خوښي، نو ئې زه د نمایندګی څخه پسي واخستم، قندهار ته راغلم شیخ صاحب او معاون صاحب سره یوې بلي کوټی ته ولاړه.

حفیظ الله امین هم لار رېګنه کړی وه، نوی پرسیاست راغلی وو اوسیاسي شوق ورته پیدا سوی وو، پدې وخت کي لا په سیاست کي شین فهوالذی ( شین په والذي ) وو. دا هغه وخت دئ چې حفیظ الله امین به کابل دارلعلمین کي رسمی دنده ترسره کوي او د سیاست خورا شوقي دئ، مګر په سیاست کي خال نه لري.

نو ئې د غټانو، پوهانو، عالمانو سره ديد واديد کاوه، د هغو خبري به ئې اورېدې، چې په دې سلسله کې په شيخ صاحب هم چارورد کړی وو، به هفته کې يو پلا دوه پلا راتلی ورته.

شيخ صاحب د خپلو ښو اخلاقو پر بنا کوږټ جواب هم نسوای ورکولای او چندان ئې خوښ هم نه وو، خو وسوالوته ئې جواب ورکاوه، مگر ده ته ئې جواب نه ورکاوه. امين چرت نه واهه، نه ئې ځان پوهاوه خپل ځان ئې ملا کاوه او د مجلس څخه به ئې زده کړه کول، پدې ځان نه پوهاوه چې د شيخ ورنه راسره وزي.

...په کابل کې يو وخت زه و شيخ صاحب د شير احمد خان په سرای کې په يوه بالا خانه کې ناست وو(د شير احمد خان د کاروان سرای پرځای اوس د موجوده مخابراتو جگ تعمير ولاړدی) لاندي تر بالاخانې د بازار شاهي په نوم د کابل يو عصري بازار وو، چې خلگ به مازديگر – ماذيگر پکښې گرزېدل چکر به ئې واهه، په دې خلگو کې به خال – خال کندهاری هم تر ستر گوکېدی. موږ لوړ ناست يو دليري يو کندهاری را روان دئ، شيخ صاحب زما څخه پوښتنه وکړه، چې هغه سړی څوک دئ؟ ما ورته وويل ولاکه ئې پېژنم چې څوک دئ. ده راته وويل: چې هی ملا دي رگه سه! ماويل چې ته به ئې اوس د ماما، او اکا نوم لا را واخلې. د مرحوم شيخ صاحب دا خبره په ظاهره ساده وه خوزه ئې فکرجن کړم او د ده په خبره کې ډوب سوم، چې ديوه شخص، اشخاصو، اقوام او جامعې پېژندل په کاردي، ولې په جامعه کې چې سړی ژوندکوي، دهغې جامعې خلگ، خصوصيات، عادات او کلتور پېژندل ضروري ولازمي خبره ده.

پخپله شيخ صاحب د کندهار اکثره اشخاص او کورنې پېژندلې، په بازاز کې به د عادي خلگو پشان روان وو، خو ځېر به ئې خلگو ته ايله کړی وو او تر دقيقې مطالعې به ئې لاندي وه، د هغوی کړه وړه به ئې څېړل او په ښو کارو به ئې خوښېدی په ناوړه کار وبه ئې خوږ ېدی. ده و چاته سر نه ټيټاوه خو د لمانځه پروخت به دغه باوقار شخص دنه عاجز په کاره مغزي خالق ته ولاړ وو، چې واقعاً د حضور لمونځ به ئې ادا کاوه.

د لوی سره به لوی، د کوچني سره به کوچنی وو. د لوی استاد حبيبي سره په کښينوست يو ډول به گډوو او بيا چې به دبل چا سره هم صحبت سو د هغه پر سويه به ورسره رغېدی. لوی استاد حبيبی صاحب ئې ستاينه کول او احترام ئې ورته درلود.

... پارلمان ته چې به ننوت دا احمد شاه او مرويس نوم به بياد سو او ده کبر نه کاوه بې کبره ئې د هرچا سره خبري کولې د هرچا سره چې هم صحبت سو د هغه سره به آگويه وو.

شيخ صاحب د مجلس خلگ داسي وبشلي وه، چې ځيني ئې تر روغبړ بالا خبري نسي کولای. ځيني ئې لس دقيقې گډېدلای سي، بعضي نور بيا د نيم ساعت، د پاره د خبرو ذخيره لري او نور د پوهي، علم او معلوماتو خاوندان د مجلس ترپايه هم خبري کولاسي، هم مدللي وي، هم معقولي وي او هم پرچانه بار ېږي. ده مرحوم به دا هم ويل، چې حکومت وزراء، سفراء او حکماء، داسي اشخاص مقرره وي، چې ښه بدنه ولري او عکس ئې ښه راځي، دريشي (لباس) ئې منظم وي قومي وي، نور نو که خوشي کډو وي او تر پان تر خوله را باسي هغه ته ئې نه گوري، که ئې تصادفاً يو څه لياقت درلودی، خو پوها.

ما دمخه يوه اشاره کړې وه، شېخ صاحب دا شپزې سره علاقه درلوده. ښه سلاته ئې هم جوړول. د ده دلاس خواړه خورا مزه داره وه... شېخ صاحب په خپله ډوډۍ په ډېر خوند خوړل، کوچنی – کوچنی ګولۍ ئې اخستې ګوله ئې ډېره ژوول، کرار – کرار په مزه – مزه ئې خوړل... موږ ټولو به په هول – هول ډوډۍ واپیلل ولاړ به سولو، دغه وجه وه چې شېخ صاحب له سترخوانه اخرې سړی وو چې ولاړ به دئ.

د معاون صاحب په کوټه کې به موږ انډيوالانو د ماز ديګر د لمانځه پس بيا تر ما خستن پوري باندار کاوه، په مختلفو موضوعاتو به موسات تېروو اکثره به نقل مجلس سرور کاکو وو. د کوټې تر ټولو وروسته به نو زه و شېخ صاحب ترڅهار سو پوري سره ملګري وو، کله به ويران صاحب هم وو، کله به هغه د کوټې په ټولو مصروف سو موږ به ځني را دمخه سوو.

ما يوه شپه پدې لږه فاصله کې چې هغه وخت د نوي – نوي احزابو د راوتلو خبري تودې وې وويل چې سياسي حالات خورا په ښور کې دي، حزبونه جوړېږي، راځه چې زه او ته هم يو حزب ته ولوېږو. ده لکه دمخه چې جواب جوړ کړی وو، وې ويل پام کوه – پام کوه چې ختا نه وزې، وې فرمايل: چې زه خو اوس هم په حزب کې يم. ما ورته وويل: په کم حزب کې؟ ده ويل: په خدائي لښکر) کې. ما وويل: په هغه کې خوزه هم يم، يو بل اقتصادي، سياسي حزب ښيم.

شېخ صاحب و فرمايل: چې نو په هغه حزب کې به لوېږو چې د کښتي خوا څخه جوړېږي. د مثال په توګه چې بزګر ئې د پاڼډله او کرد څخه بيل پر غاړه را ولاړېږي يا طالب د حجرې، منور له فاکولتې څخه هغه نو حزب او اصلي حزب وي. دا چې باداران او لوړ مقامات

حزب جوړوي د داسې احزابو خوند نسته، خو شي فريب دئ. سياسي حزب بايد له کښتي ونښلې پورته ولاړ سي، شېخ په ډېره لږه فاصله کې يعني له کوټې تر څهارسو پوري پنډ سوال ته په ډېرو ساده د لائيلو جواب وواية زه ئې په هغتو په هغه جواب کې ډوب کړم.

د روژې مبارک شپه ده، سبا ته د روژې لمړی ورځ ده، د ماښام مهال دئ، شېخ صاحب د انډيوالانو څخه وپوښتل چې سبا عمومي رخصتي ده، د روژې اوله ده څنګه ئې کوئ؟ څه پروګرام لرئ؟ انډيوالانو وويل: موږ پروګرام نه لرو ته څه وايې؟ ټولو انډيوالانو شېخ صاحب ته اختيار ورکی، شيخ پروګرام داسې وواية: سهار به کوه طول ته ولاړ سو، ورځ به تېره کو ماپښين قضاء به څهل زينو ته راسو د ماز ديګر مونځونه به د څهل زينو په دالان کې وکو خوش – خوش به راهي سو، روژه مات ته به کورته راسو انډيوالانو ورسره ښه کړه او دا فيصله ملګرو ومنل دعادت له مخې د ماښام د لمانځه باد ناوخته د معاون صاحب د کوټې راووتلو، ټوله خپلو – خپلو کوروته ولاړو... شپه تېره سوه، سهار وختي دا وو بجو په شاوخوا (ويران) دروازه را وټکول زه ورغلم د ده تر سترګو اوښکې را ايله سوې، ويل شيخ صاحب وفات سو، زما تر سترګو هم اوښکې راغلې ما ول کله څنګه؟ ده ويل برائې غالبه داده چې سکته وه... نو هغه ورځ چې موږ به په کوه طول کې تېرول د کوه طول په تول په غم او ګروم کې تېره سوه. هغه ساعت چې موږ به په څهل زينو کې تېراوه د مرحوم د لحد و دوو ځينو ته مو تېر کې، هغه لمونځ چې ماز ديګر به مو په څهل ځينو کې ادا کاوه، په هديره کې د جنازې لمونځ پر بالا سو او هغه روژه مات چې ده به کور ته رساوه و ګور ته ئې

ورساوه او دژوندانه دتمام عمر څخه روژه سو. اناالله وانا الیه راجعون. کل شئ ذایقه الموت.

دغه روژه مات دي، د ده د جنت د نعمتو څخه وي (امین) زه چي د هدیرې څخه مخ د ښار بیا د کور پر خوا روان وم پر لارمي د ده ویر په زړه کي وو، نومي د ده د مړینې ویرنه پرلاري باندي جوړول او رارهي وم، کور ته راغلم روژه مي لا په بازار کي ماته کړه ډوډۍ مي وخوړه د تراویح پس مي هغه ویرنه پر کاغذ ولیکل، خو زما د نورو کتابو په لای کي مي کتبخانه ټول کابل ته مي راوړه په کابل کي لا راسره وه اوس دلته په کراچي کي چي مي هر څه پسي وکتل ژوندي ژړانده ورکه سوه، خو څنګه چي ما ډېره تکرار کړې وه یو څو بیتونه مي پیاد وه، هغه دادي دیاده درته لیکم خامخا به هو به هو نه وي مګر ډېر تغیر به نه لري.

نن مي بیا سترګي ژړاندي بیا دزړه لمبه تازه ده
چي مي پورته پر وړو د مرحوم شیخ صاحب جنازه ده

د روژې اوله ورځ ده د باقي ژوندانه روژه سوې
د دوستانو له سترخوانه د افطار تللې مزه ده
تالیدې ورځي تاریکي څکه شپي دی رونه ولې
تا ترلي شنې قبې ته دلوړ فکر کوازه ده
ستا دروند والی به په کم کاني تلمه دروند صفته
د تقوا پرهېزګاری دي را څه ورکه اندازه ده
په وجود دي نازېدلو ستا خبر وه د منلو
اوس په تا مړي نازېږي څکه لاردي پاکیزه ده
ایمان دار امانت کاره تانیولی د خدای لاره
په عمل دي کړه ثابته هسي نه چي آوازه ده
لوی عالم په زړه صادق وي مخالف دهر فاسق وي
هر خبر دي منطقي وه حکمتی وه وجیزه ده

محترم عبدالظاهر جانه!

د عالی مقام مرحوم مغفور شیخ صاحب په باب دغه پورته نوشته مي ستا په غوښتنه ولیکل او در ومي لېږل. ستا خط ډېر دمخه راغلی وو، ما ئې جواب ډېر وروسته درکړی، په دې کي زما هیڅ بزګاری نسته اوڅان نه ملامتوم. ملامتیائې زما پر هېره، زما پر حوصله، زما پر فکري طلاطم او زما د افکارو پر تشتت لوېږي، متاسفانه زه په دغه ټکه اخته یم چي کله - کله مي نه قلم ته ګوتی ورځي نه کتاب ته، کله - کله مي بیا قلم ایله سي نو هر څه کجاتي چي ئې ولیکلې وې لیکلې.

زه ستا څخه بخښنه غواړم چي دا په زړه کي درونه ګرزي، چي لکه چي ریشا څان و څړاوه او زما غوښتني ته ئې جواب ونه وایه دا دی نن د معافی سره تاته دغه نوشته وړاندي کوم. نن نو زه ډېر خوشحاله سوم، چي ستا غوښتنه مي تر یوه حده پوري پر ځای کړه او د مرحوم شیخ صاحب د پور څخه مي په رویی کي یو غاز تادیه کی، که نور هم دبني، په کنج کي څه وه او په دا ورسته کي راپیا دیدل هغه هم درلیږم اوس نو څه نه لرم پر حق تعالی مي سپارلی یې په مخه دې ښه

وشیخ صاحب ته ارادتمند
عبدالهادی ریشا کراچي
۱۷ دجولای ۱۹۹۸

# پوهاند رشاد ته د مولانا ابوالوفاء افغاني لیک

جلال کوچه ۹۳۲ حیدرآباد دکن
جمعه ۱۴ محرم ـــ ۷۰هـ

وفقک الله لمایحب ویرضی
ښاغلی بابا رشاده!

السلام علیکم و رحمة الله – ستاسي شیرین مکتوب راورسېدی. موجب د ډېر سرور وګرزېدی. رب دي زما په قام کي ستا وارو ډېر ښاغلي ځوانان پیدا کي، چي د قوم سترګي باندي خنکي وي. په جواب کي مي ډېر تاخیر وکئ، په سبب د ډېر شغل. ښېله جمعې مبارکي د جواب فرصت نه لرم. ما و کوټي ته نوشته کړه، چي د حاجي جمال الدین، محمد رفیق په واسطه پیسې راولېږي، ستاسي په نامه. امید چي یو څه پیسې ستاسي په نامه یو وخت درسي. د زړه سره! تا خوایش کړی دئ، چي زه د زندګۍ حالات جمع کم. (پر) سترګو، زما به څه حالات وي؟ سراسر تقصیر.

حریفـان بادهـا خوردنـد و رفتنـد
تهـی خمخانـه هـا کردنـد و رفتنـد

چو رفت از دست خم و جام و ساقی
بمـا عـاجز غـم نمانـده هـیچ بـاقی

عمر دغسي راباندي تېر سو. علماو د دین له پاره لوړ، لوړ خدمتونه وکړه، زه او زما وارو خواران د نس په غم کي پاتي سوه. تا هم دا کار په هغه وخت کي ممکن دئ، چي زه وطن ته ولاړ سم او د علم له خدمته فارغ کښېنم. باقي پاتي سو تصویر؛ هغه خو د حکومت له جبره د راهدارۍ له پاره اخلم او ښېله دې ئې روا نه بولم. له دې جهته چي په حدیث شریف کي ئې سخت ممانعت راغلی دئ او زجر باندي کړی سوی دئ. له دې خوا به اطمینان لرې چي زه اوس روغ یم او په کار بوخت یم. د کتاب مختصر الطحاوي شل صفحې د تحشیې پاتي دي، چي له دې فارغ سوم، نو یو لوی غر به مي تر اوږو کښته سي. د مصر د خط په امید کي ناست یم. په هغه وخت چي زېری راسي، چي د مختصر په طباعت مو پیل وکړه سو، نو زه به هلته اختر کوم. (چي د خالو لښکري راسي -زه به بولان له د یار دید لره ورځمه).

پسې به نو بیا په نور کار کي قدم ایږدم. کارونه خورا ډېر دي او ټوله نیم کله پاتي دي. زه ورته کمزروی سوم او کومکي نه وینم. امید چي ته به مي له خپلو خوږو مکتوباتو څخه نه هېروې. په پای کي دي درباندي د رب سلام وي، عافیت دي له ربه غواړم.[۱]

ابوالوفاء

[۱] د مولانا دغه لیک خلیل الله سروري تر موږه را رسولی دئ. (اداره)

# د اطلاعات او فرهنګ رياست د فعاليتونو دوې مياشتنی راپور

- اطلاعات او فرهنګ او معارف رياستونو په ګډه مالي همکاري د ښوونځيو تر منځ د يوې اوونۍ لپاره د فوټسال سيالي جوړه کړه، چې سلګونو زدکوونکو برخه پکښې اخيستې وه، د سپورټ په برخه کې د دې سيالۍ ډېره ستاينه وسوه.
- د اطلاعات او فرهنګ رياست په لومړي ځل په شاندارو مراسمو په کندهار کې له باچا خان علمي-څېړنيز مرکز سره په ګډه د باچا خان ۳۰ تلين ولمانځی.
- اطلاعات او فرهنګ رياست، د کندهاري سندرغاړو کانسرټ او ستاينغونډه جوړه کړه، چې د بي بي سي تر څنګ معتبرو رسنيو راپورونه پر جوړ کړل، چې د محلي موسيقۍ د ودې لپاره يو ښه اقدام وو.
- د ډاکټر عبدالرزاق پالوال د «وګړي دوړخيان دي او سريان هم لا» کتاب پېژنغونډه جوړه سوه، چې د کندهار پوهنتون د استادانو تر څنګ ګڼ شمېر محصلينو ګډون پکښې کړی وو.
- اطلاعات او فرهنګ رياست له بشر حقوقو کمېسيون سره په ګډه د معلولينو د حقوقو د پوهاوي په اړه غونډه جوړه کړه.
- ولايت مقام او اطلاعات او فرهنګ رياست په ګډه له افغانستان څخه د روسي پوځونو د وتلو ۲۹ کليزه ولمانځله.
- اطلاعات او فرهنګ رياست په ولايت مقام کې د اداري اصلاحاتو او ملکي خدمتونو له کمېشنر سره د ځوانانو يوه غونډه جوړه کړه، چې د بستونو د ازمويني نوې پروسه ورته توضيح سوه.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د ترکيې د تحصيلي بورسونو په اړه د نارينه او ښځينه ځوانانو لپاره يوه توضيحي غونډه جوړه کړه، چې ګڼ شمېر ګډونوالو ته پکښې د ترکيې د بورسونو په هکله معلومات ورکول سول.
- لوی کندهار ادبي بهير د اطلاعات او فرهنګ رئيس فضل الباري بريالی، حاجي عبدالظاهر څرک او محمد اکبر نعمتي د علمي او فرهنګي هڅو له امله وستايل او تقدير نامې ئې ور کړې.
- د اطلاعات او فرهنګ رياست له خوا جوړې سوې کمېټې چې مشري ئې د اطلاعات او فرهنګ رئيس پر غاړه لري، له تعليم الاسلام او زېور راډيوګانو څخه ليدنه وکړه او د هغوی د يوې اوونۍ خپاره سوي مواد ئې د اورېدلو لپاره ځني راواخيستل او د خبريالانو د جرګګۍ په ناسته کې ئې نيمګړتياوې توضيح سوې.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د نوي ګمارل سوي تحويلدار په ذريعه د رياست ټول اجناس ثبت کړل او د رياست زاړه له کاره لوېدلي اجناس ليلام او ټول قانوني مراحل طی کړل او د سالونو لپاره ئې په ستور کې پرتې چوکۍ ترميم کړې.
- د ژړۍ ولسوال له ولايت مقام سره په ګډه په عينو مېنه کې د ځوانانو يوه غونډه جوړه کړې وه، چې د اطلاعات او فرهنګ رياست محترم رئيس کارونه ئې وستايل او په دې موخه ئې ستاينليک ورکړ او پګړۍ ئې ورپر سر کړه.
- اطلاعات او فرهنګ رياست له سبا پوهنتون سره د خاصو مراسمو پر مهال يو هوکړه ليک امضاء کړ، چې له مخي به ئې د اطلاعات او فرهنګ رياست له خوا ورمعرفي کېدونکي ۵۰ نارينه او ۵۰ مېرمني په ۷۰ فيصده تخفيف شاملوي. په دې اړه اطلاعات او فرهنګ رياست له بېلا بيلو تعليمي مراکزو او ادارو سره خبري وکړې، چې بالاخره ئې تقريباً ۷۰ نارينه او مېرمني ورمعرفي کړې او د متفرقه ازمويني لپاره هم دا لړۍ روانه ده.





- شهيد حشمت خليل كرزي خيريه بنسټ اطلاعات او فرهنګ رياست ته ۲۰ د روسيې بورسونه ورکړل، چې اطلاعات او فرهنګ رياست ئې په رسنيو کې اعلان خپور کړ او د يوې ځانګړي کمېټې له خوائې په رياست کې له کانديدو ځوانانو څخه ازموينه واخيستل سوه، هغه کسان چې بورسونو ته بريالي سوي، د تګ پر اسنادو ئې کار روان دی.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د ښځو نړۍ واله ورځ په خاصو مراسمو ولمانځله او ځينو مېرمنو ته ئې تحفې او تقديرنامې هم ورکړې.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د سوداګرۍ او صنايع رياست په مرسته د ټولو شرکتو د جواز جوړېدو او تمديد پر مهال په طلوع افغان ورځپاڼه کې اشتراک کول، چې تر څنګ ئې د سياحتي شرکتونو اشتراک او د رهنمايانو او دولتي ادارو د اشتراک لړۍ روانه ده.
- پيوند مدني ټولني د اطلاعات او فرهنګ رياست په مرسته په اطلاعات او فرهنګ رياست کې د عملي علمي مطالعې د سيالۍ پروګرام جوړ کړ، چې تر ۳۰۰ زياتو کسانو ګډون پکښې کړی وو او اکثره ګډونوالو ته جايزې ورکول سوې.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د ملي آرشيف د فرهنګي ميراثونو او خطي نسخو نندارتون ته ۴ تنه معرفي کړل، چې د هغوی پر لېږدولو او راستنېدو ئې ډېر کار وکړ او خوشبختانه د اطلاعات او کلتور وزير پوهاند محمد رسول باوري لخوا د کندهارۍ مېرمني په لاس دا نندارتون پرانيستل سو.
- کندهار مجله تقريباً تر (۴) څلورو کالو وروسته په لومړي ځل په ډېر دقت او لوړ کيفيت د کندهار په آزادۍ مطبعه کي د (۵۰۰) پنځه سوه ګنو په تيراژ چاپ سوه، ياده تاريخي مجله پخوا ۳۰۰ ګني چاپېده، چې ټولو ولاياتو، کوټي، کندهار پوهنتون او په کندهار کي ښلا بيلو تعليمي او مهمو مراکزو ته وو ېشل سوه.
- د زوړ کندهار په اړه يوه مقاله وليکل سوه او په ملي تلويزيون کي په ويډيويي بڼه خپره سوه.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د کندهاري مېرمنو پر يو علمي او فرهنګي انجمن کار کوي، چې تر اوسه ئې اساسنامه او د غړيتوب شرطپاڼه جوړه سوې ده او په آينده کي به کار پيل کړي.
- د اطلاعات او فرهنګ رياست په هڅو نوراني او همت کمپيوټر جوړولو مرکزونو له اطلاعات او فرهنګ رياست سره د ۳ کمپيوټرونو مرسته وکړه.
- له ميوزيم، نګارستان، عامه کتابتون او ټول رياست څخه د ۵ ښوونځيو سلهاوو زدکوونکو ليدنه وکړه.
- اطلاعات او فرهنګ رياست د پيوند مدني ټولني په پسرلنۍ مشاعره کي د ۱۰۰ کتابونو، له ملي امنيت رياست سره د ۵۰ کتابونو، د سمون په نوم له يوه خبريال سره د ۴۰ کتابونو په ژړۍ اولسوالۍ کي له اسعد سوري ليسې سره د ۴۰ ټوکو کتابونو، د ۳۰۰ زدکوونکو سره د ټولو تدريسي کتابونو او يوه لپټاپ مرسته وکړه.
- پيوند مدني ټولني د اطلاعات او فرهنګ رياست په بشپړه همکارۍ په پنجوايي ولسوالۍ کي پسرلنۍ مشاعره جوړه کړه، چې له ۱۲ ولاياتو څخه شاعرانو او تر ۱۰۰۰ زياتو مينه والو ګډون کړی وو.
- د «ويښتيا» د لکچرونو او بحثونو په لړۍ کي د طلوع افغان مدير نياز محمد نثار د «فاشيزم» او د ملالۍ پوهنتون محصل حشمت ساحل «له افغانستان سره د منځنۍ اسيا د هيوادونو اړيکي او د دې سيمې لپاره د امريکا ستراتيژي» د کندهار پوهنتون استاد شعيب وحدت «د تاريخ فلسفه» او ښاغلي نذير ولسمل د «اسهام» په اړه لکچرونه وړاندي کړل.
- اطلاعات او فرهنګ رياست په بابا ولي زيارت کي د نوروز شانداره مراسم جوړ کړل. چې د جنډۍ پورته کولو تر څنګ ويناوي، اتڼونه او ورزشي نمايشات هم وړاندي سول.
- اطلاعات او فرهنګ رياست او کندهار پوهنتون په ګډه پسرلنۍ د سولي مشاعره جوړه کړه چې تمثيلي پارچه او جايزې ئې برخي وې او تر ۳۰۰ زياتو کسانو ګډون پکښي کړی وو.
- د لوی کندهار ادبي بهير اوونيزي مشاعرې د اطلاعات او فرهنګ رياست په مرسته دوامداره هره پنج شنبه جوړېږي، چې د کندهار ښار او اولسواليو زيات شاعران او د شعر مينه وال پکښي ونډه اخلي.

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar Information and Culture Department

## د باچا خان څو مهمي ويناوي

- اې پښتنو! ستاسو کور وران شوی دی. راپاڅئ، دا وران کور ودان کړئ. دا خبره په ياد ولرئ چي تاسي له يوه باتور نسل سره تعلق لرئ.
- رسول اکرم ص. موږ ته دا سبق راکړ؛ هغه کس رښتينی مسلمان دی چي څوک د الله تعالی د مخلوق د ګټو لپاره کار کوي.
- زه نه مايوسه کېږم. مايوسي پر هغو کسانو راځي چي د ځان لپاره کار کوي. زه خو د پښتون خدمت د خدايي خدمتګار په توګه کوم. زه به ولي مايوسه کېږم؟!
- زموږ د صبر جنګ دی. موږ د وهلو او ښکنځلو بدل نه اخلو. موږ به صبر کوو او ځان به پر خدای ج. سپارو. موږ خدايي خدمتګار يو. خدای به زموږ بدل اخلي.
- زما مذهب رښتيا، مينه، محبت او د خدای ج. خدمت دی. مذهب تل نړۍ ته د ورورولۍ او ميني پيغام راوړی دی.